# ځرک

## د ولس په بمبار

## او شهیدولو کې امتیازلټول؟!!!

شپاړسم کال، پنځمه، پرلپسې ۱۱۲مه ګڼه،
سرطان ۱۳۹۸ل، ذي القعدة ۱۴۴۰هـ ق، جولای ۲۰۱۹م

## اشــــغال، د بیان ازادي او جمهوریت...

- ❖ رسنۍ، طالبان او د بیان آزادي... !!
- ❖ د اسلامي امارت د فرهنګي کمیسیون ویارونه او خدمتونه!
- ❖ ترامپ و پرونده های نا تمام جهانی اش
- ❖ داعش، او د امریکا وروستۍ تجربه... !!

## د اشغال په سیوري کې

دخپلواکۍ سلمه کلیزه باید څوک ولمانځي ؟!








## د ذي الحجې دلسو ورځو

## او د قربانۍ فضیلت

## علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپرونه






شپاړسم کال، پنځمه، پرلپسې ۱۱۲مه ګڼه،
سرطان۱۳۹۸ل، ذي القعدة ۱۴۴۰هـ ق، جولای۲۰۱۹م

**امتیاز :**

**دا متیازخاوند :** دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر :** عبید تنویر

**لیکوال پلاوی :** ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

**ګڼون :**

| | | |
|---|---|---|
| افغانستان : | ۳۵۰ | افغانی |
| پاکستان : | ۵۰۰ | کلداري |
| امریکا : | ۷۰ | ډالره |
| اروپا : | ۷۰ | یورو |
| یوه ګڼه : | ۳۰ | افغانی |
| | ۶۰ | کلداري |

**یادونه**

حتمي نه ده چې په ځرک کې خپرې شوې مقالې داداري دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه



**پتې :**

srak_111@yahoo.com


## لړلیک

بسم الله الرحمن الرحیم

سرمقاله

# د ولس په بمبار او شهیدولو کې امتیاز لټول؟!!!

د قطر هیواد پلازمېنه دوحه کې چې د جولای په (۷ او ۸) کومه بین الافغاني غونډه ترسره شوه؛ د اسلامي امارت د نورو نومیالیو مشرانو او سیاسي استازو ترڅنګ د مذاکراتي ټیم غړي ملاخیرالله خیرخوا د غونډې برخوالو ته د خبرو پرمهال، یوه تاریخي سرګذشت ته په اشارې سره وویل: مونږ پنځو تنه افغانان او د اسلامي امارت غړي چې کله د ګوانتامو له زندان څخه آزاد او قطر ته راوستل شوو؛ څه موده وروسته د قطر دولت له مونږ نه وغوښتل چې تاسو باید دلته د اوسیدو لپاره اسناد (پاسپورتونه) ولرئ، مونږ مجبوراً د کابل له اداري نه د پاسپورتونو مکرره غوښتنه وکړه، خو کابل اداري ترپایه منفي ځواب راکاوه چې دا کار زمونږ د وس او صلاحیت خبره نه ده، تاسې مخامخ له امریکایانو غوښتنه وکړئ، رښتیا هم هماغسې وه، مونږ چې کله له امریکایانو د افغاني پاسپورتونو مطالبه وکړه؛ هغوئ د څو ورځو بلکي د څو ساعتونو په اوږدو کې تیار پاسپورتونه دوحې ته راوړل.

د خیرخواه صاحب په خبره، هغه څوک چې ځان ته ولسمشر او دولت وايي او افغانانو ته د امریکایانو له اجازې پرته تذکره او پاسپورت نشي ورکولای؛ نو آیا بیا مناسبه ده چې له دغسې یوه لویدلي، بې واکه او حلقه بګوش رژیم سره اسلامي امارت د افغانستان د سرنوشت او حیاتي مسایلو پرسر مذاکرات وکړي؟

د خیرخواه صاحب پورتنی خبره مو هسې د (مشت نمونه خروار) یوه بېلګه ذکر کړه.

د تیر کال خبره ده اشرف غني له طلوع تلویزون سره په مرکه کې د دې پوښتني په ځواب کې، چې ولې د کابل–کندهار د لویې لاري د امنیت لپاره د ځانګړې فرقې منظوري نه ورکوئ؛ وویل: مونږ ته د اردو او عسکرو معاش امریکایان راکوي، تیل او لوژستیکي مواد هغوئ راته برابروي د اردو کوم تشکیل چې موجود دی؛ دا امریکایانو منظور کړی مونږ یو نفر هم وربانديي زیاتولای نشو، نو که چیري امریکایان د یوې میاشتې لپاره په اردو معاش او د یوې اونی لپاره تېل بند کړي؛ مونږ له سقوط سره مخ یو.

اوس د کابل رژیم په خپل همدومره شړیدلي او شرمیدلي حالت بیا هم سر را اوچته وي، چیغي او نارې وهي چې دوئ هم باید په مذاکراتي پروسه کې نه یوازې دخیل کړل شي، بلکي مالکیت یې هم دوی ته وسپارل شي.

دا ډول بې واکه، پردیپال، ولس او اسلام دښمنه رژیم چې نور ټول چانسونه یې په اوبو لاهو شوي، ټولې حربې یې ولس او نورې پرمخ ور وهلي؛ اوس یې د عام ولس بمبارولو، شهیدولو، اوځورولو ته په پراخه کچه متې را بډ وهلي، په هرولایت کې د ولسي وکړو هغه ډول قتل عام او بمباردولو ته لاس اوږدوي چې په وحشت او بربریت کې ساری ونلري.

دا ټول وحشتونه د دې لپاره کوي چې ترڅو اسلامي امارت وویروي، چې که دوئ د مذاکراتي پروسې کې ورګډ نکړل شي، نو دوی به عام ولس له تیغه تیروي.

د کابل رژیم بې کفایته چارواکي او اجرتي قاتل اربکیان دې په دې پوه شي چې د وحشت او بربریت له لاري هیڅ نشئ ترلاسه کولای، ستاسو شپې ورځې نوري په حساب پاتي دي؛ نورې هغه ورځې را رسیدلي چې د تیرو حلقه بګوشو رژیمونو په څیر به د افغانانو په توره پر ځمکه رنسکوریږئ، او له هیواد، اسلام او ملي ارزښتونو سره د دښمنی حساب به د ذرې ذرې په اندازه درسره کیږي.

متل دی چې وایی، زه دې په ایمان شک لرم او ته راته مریدان نیسي، افغانان په دې فکر کې دي چې د اسلامي عدالت منګلو ته دې وسپاري او د تیرو ۱۸ کلونو د غداریو، ستمونو او یوه یوه وحشت پوښتنه درنه وکړي، خو تاسې په سوله ایزه پروسه کې د امتیاز په لټه کې یاست.

این خیال است، محال است، و جنون

# د اشغال په سیوري کې

دعابد لیکنه

## دخپلواکۍ سلمه کلیزه باید څوک ولمانځي ؟!



د اسد دمیاشتې په ۲۸ مه نېټه له انگرېزي استعمار
دافغانستان د خپلواکۍ داخیستو سل کلونه پوره کیږي،
له نیکه بخته! تصادف داسې دی چې داکلیزه په هیواد کې
داسې مهال رابره کیږي چې هیواد دیو حکومت تر کنترول
لاندې نه دی، بلکې دغربي استعمار په وړاندې دخپلواکۍ
د جنگونو سور ډگر دی اوپه ۲۴ ساعته کې څه چې په یوه
ساعت کې به داسې گړۍ نه وي چې دهیواد په یوه برخه
کې دې د خپلواکۍ دمبارزینو، اشغالگرو او لاسپوڅو
ترمنځ یې لاس په لاس جگړه نه وي روانه.

دکلیزې سلوکلونو ته په ارزښت دا تصادف دجنگونو
له بدبختیو سره سره دا نیک بختي لري چې هسې په سره
فضا او نا انډول حکومتي حاکمیت کې نه تېرېږي، بلکې
دخپلواکۍ دمعرکې په داسې شېبو کې داکلیزه راځي چې
للـه الحمد د سرښندنو دانه ستړې کېدونکې جگړه
دکامیابۍ حد ته رسېدلې، همدا مهال خو هغه شېبې دي
چې دنړۍ لوی طاغوت امریکا داسلام له مبارزینو سره
دجگړې له ډگره دخبرو مېزته راټیټه او په وروستیوکې
پړاووکې ده.

دخپلواکۍ لمانځل به دخپلواکۍ گټونکي لمانځي چې
دوخت په ترټولو سختو شرایطو او نابرابره حالاتو کې
دطاغوت زور، زر او غوښتنو ته له خپل دین، خاورې او
ناموس نه تېر نه شول اوهغه نامکنه اونابرابره مبارزه یې
دممکن له پولو ور هاخوا دبري تر حده ورسوله .

نوعار، شرم او تاریخي پېغور هغوته دی چې داستعمار
په ډالرو یې خاوره اوایمان پلورلي وي اودخپلواکۍ نوم
اخلي اوبیادهمدې اشغالگرو په هدایت دعامه اذهانو د
اړولو لپاره دهغوی په مالي لگښت په لوړه سویه
دخپلواکۍ لمانځلومراسم نیسي.

دامریکایي غلامانو له لوري دخپلواکۍ دلمانځلو په
نامه د(۳۸۴) ملیونو مالي لگښت اعلان اومراسم په
خپلواکۍ د عقیدې او باور له رویه نه دي، بلکې ددې
قرن داستعمار دهغه لومې برخه ده چې وایي : له اولسونو
اوس ازادي باید د آزادۍ په نوم اوداسې فریبونو سلب
شي چې دغلامۍ اواشغال فکر یې ذهن ته رانشي، بلکې
تر بل هرڅه دې د آزادۍ، استقلال، حریت او خودارادیت
ټکي پرداسې مهال ډېر ډېر یادشي ، همدا لامل دی چې

داشغال لپاره تبليغاتي راديو د " آزادۍ" په نوم اوداشغال په سيوري کې داشغالگرو په لگښت ميډيا د" بيان ازادي" بولي، بشر وژنه اودبشر وژنې تراژيدۍ دبشر دحقوقو تر نامه لاندې رامنځته کوي اودېته ورته ډېرې نورې اسلامي اوملي روح وژونکې کړنې دي چې په ظاهره يې خورا روح ښونکی نوم وي خو په حقيقت کې داشغال دهمدې لومې لړۍ وي .

نه پوهېږم چې هغو بې ضميرو ته سړی کوم نوم اوکوم خطاب وکړي چې ديو څو ډالرو لپاره يې خپل افغاني کرامت اوټول ارزښتونه تر پښو لاندې کړل اود دغو شنو ډالرو په لنډ مهاله بيخودۍ کې يې په راتلونکې کې په افغاني معاشره کې هيڅ هم ځانته نه دي پرې ايښي، خو نن په ډېره سپين سترگۍ اوبې شرمۍ د افغانستان دخپلواکۍ سپېڅلې کلمه په خوله راوړي اود افغانستان داستقلال تر وارثينو (طالبانو) دوی ډېر پورته پورته غورځي، دوی فکر کوي چې په دغو نمايشي هلو ځلو به يې غلامي پټه او جنايتونه ورک شي، خو داځکه نه شي کېدای چې دغه تجربه په دې هيواد کې هر استعمار په خپلوغلامانو په وار وار ترسره کړې، ولې هيڅکله يې هم نتيجه نه ده ورکړې، اشغالگرو او پردو ته وفادار که په هر رنگ او بڼه راغلي د دې هيواد په تاريخ کې تر ټولو غدار او غلام ياد شوي دي .

داسلام غازيان له يرغلگرو د خپلواکۍ دغه کليزه په عملي ډول لمانځي او يرغلگرو ته د يوې شېبې لپاره هم دلته دآرام اجازه نه ورکوي، په دغو نمايشي- لمانځغونډو هيڅکله د غربيانو اوسنی يرغل نه شي پټېدلای او نه يې غلامان دغلامۍ کړۍ پرې له غاړې ا چولی شي، هر څوک پوهيږي چې دهيواد داستقلال وارثين څوک دي او په څه ډول د خپل هيواد استقلال ته په ژمنتيا د دغه استقلال بيه پرې کوي ؟!.

# زه خو به ظالم نه يم..؟

الله تعالی دي پر شيخ الاسلام ابن تيمية رحمه الله رحم وکړي، کله چې د دمشق په زندان کې بندي و جلاد ورته راغی او ورته ويې ويل : اې زموږ شيخه ماته ښنه وکړه (زه څه وکړم مجبور يم ) ماته امر شوی دی!..

داسلام شيخ رحمه الله ورته وويل : په الله مې دي قسم وي که چېرې ته نه وای دوی به ظلم نه کولای.

پر سفيان ثوري دي دالله رحم وشي يو خياط ورته راغی ورته ويې ويل : زه هغه سړی يم چې دوخت پاچا ته جامې (گنډم) ماته لارښوونه وکړه زه خو به د ظالمانو له مرسته کوونکو څخه نه يم؟

امام رحمه الله ورته وويل : ته خو خپله له ظالمانو څخه يې ، دظالمانو مرسته کوونکي خو هغه دی چې تاته تار او ستن پېري!..

ابوبکر المروزي فرمايي : کله چې امام احمد بن حنبل رحمه الله بندي و ، دزندان مسؤل ورته راغی او پوښتنه يې ځيني وکړل ويل : ايا هغه حديث صحيح دی چې دظلم او دظالم دمرسته کوونکي په هکله راغلی دی؟

امام رحمه الله ورته وويل : هو!

د زندان مسؤل : ايا زه خو به دظالم له مرسته کوونکو څخه نه يم؟

دزندان په تورو تمبو کې زنداني امام رحمه الله ورته وويل : ويل دظالم مرسته کوونکی خو هغه څوک دی چې ستا ويښتان کموي ، ستا جامې پرېمينځي ، تاته ډوډۍ تياروي ، ستا لپاره رانيول او خرڅول کوي ته خو خپله له ظالمانو څخه يې.

دا هغه اقوال دي چې تاريخ له ځان سره ساتلي دي خو موږ هېرکړي دي.

الله تعالی قرانکريم کې فرمايي :

وَلَا تَرْكَنُوٓا إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ اللَّهِ مِنْ أَوْلِيَآءَ ثُمَّ لَا تُنصَرُونَ [سُورَةُ هُود : ۱۱۳].

ژباړه : د دغو ظالمانو لوري ته يو بځری مه کږېږئ، که نه نو دوزخ به مو ونغاړي. او تاسي به کوم داسي دوست او سرپرست ونه مومئ چې د الله څخه مو وژغورلای شي او له هيڅ يو ځای څخه به تاسي ته مرسته ونه رسيږي.

# اشغال، د بيان ازادي او جمهوريت ...

ارمان مجاهد

دروان ۲۰۱۹زکال، جولائي په ۷-۸مه نيته دقطرپه پلازمينه [دوحه] کې داسلامي امارت د۱۷کسيزهيئت اودعاموافغاني شخصيتونو اومخوروترمنځ دبين الافغاني تفاهم غونډه جوړه شوې وه.

يادې غونډې ته پر ځوميرمنوسربيره يوشميرعام افغان سياستوال،مخوراشخاص اودبېلابيلوتوکمونو استازي بلل شوي وو، دهغومنابعوپر ويناچې داغونډه يې له نږدې څارلې داکثريت ګډونوالوغوښتنه اوارزو په افغانستان کې رښتينې سوله اودروانې ځلويښت کلنې تراژيدۍ اوغميزې پای ته رسيدل و.

دافغانستان اسلامي امارت دهيئت غړوغونډې ته په ويناوکې داسلامي امارت دسولې تګلاره روښانه کړه اود رښتينې سولې راتلوپه وړاندې يې عمده موانع دغونډې دګډونوالوسره شريک کړل، دهغوی په اند:هيوادته دسولې نه راتلوپه واړندې قوي خنډ اوغټ عامل دامريکا په مشرۍ دخارجي قواوو شتون او دهغوی لخوا دافغانستان اشغال دی، ځوچې خارجي ځواکونه وتلی نه وي اوهغوی دافغانستان اشغال پای ته رسولی نه وي،سوله راتلل ناشونې ده، ددې لپاره دهغوی لخوا يوځل بيا داغوښتنه تکرارشوه چې چې ټول افغانان بايدپورته شي او په يوغږ له امريکا نه وغواړي چې ته! د زرهاوو کيلومترلري څخه راغلی يې زموږ هيواد دې اشغال کړی، هرورځ موکلي ، کورونه، سرايونه، روغتونونه ،مدرسې اوښوونځي بمباردوي اوپه لسګونوخلک مو په شهادت رسوي، بس دی نورددې وحشت اوبربريت نه لاس واخله! او زموږ په وطن کې روان ظلمونه پای ته ورسوه! نوکه امريکا دسړيتوب په منطق ځان پوهاوه ښه ترښه اوکه اوهنوزيې

پخپله سرتمبګۍ ټينګارکاوه نوبيا هرباضميره افغان ته غيرت پکاردی له دې حالت نه چې امريکايان موپه بستربانديې وژني اوپه کورونوراخيژي ښه داده چې موږټول ولس پسې ووځو او پرضد يې پراخ ولسي۔ پاڅون وکړو داخود ډيرشرم وړده چې هره ورځ دمظلومانوجنازې پورته کوو اوقاتلو امريکايانوته يې خرې سترګې مونيولې او ورته ګورو...

ليکن دهغوبې وجدانه اوبې ضميره افغانانوپه حال ډيرافسوس چې هغوی دځوډالرولپاره سترګې پټې کړې ،په افغانستان کې روان جنايتونه اوظلمونه په نظرنه ورزي، او لا تراوسه هغوی دافغانستان په اشغال هم باور نلري...

دباوري منابعو له قوله دقطر تازه ناسته کې يوشمير کسانولخوا په دې ټينګارکيده چې افغانستان اشغال شوی ندی؛ په دې دليل چې افغانستان ته دامريکا په مشرۍ بهرني ځواکونه دملګروملتونودپريکړې په نتيجه کې راغلي؟ اوبيا افسوس دداسې بې ضميره خلکوپه بصيرت اوپوهه! دافغانستان خاوره دملګرو ملتونو ملکيت ده که دافغانانو؟ ددې خاورې اوجغرافيې مالکان افغانان دي که ملګري ملتونه ؟ که داهيواد دملګرو ملتونوملکيت وي نوبيا دادليل پرځای اومعقول دی اوهم دملګرو ملتونو پريکړه ليک درست دی اوکه دا هيواد دافغانانووي، مالکان يې هم افغانان وي؛بيا ملګرو ملتونوته داحق چا اوکوم قانون ورکړی چې ديوزاد قوم اوهيواد دسرنوشت په اړه پريکړه کوي؟ دملګروملتونوڼيواله اداره، دوهم نړيوال جنګ وروسته ددې لپاره رامنځته شوه چې په نړۍ کې به داقوامو ترمنځ دجنګونومخنيوي کوي، دا نه چې

دقومونو اوهیوادونوترمنځو به نړیواله ټولنه دجنګ سپرغۍ شیندي! ملګروملتونوپه افغانستان دامریکا ظالمانه یرغل په ملاتړکولو خپله بیطرفي متنازع ګرځولې، دافغانستان په قضیه کې ملګري ملتونه بیطرفه نه بلکې دامریکایي جهت ضمیمه ګرځېدلي هیڅکله دهغوی پریکړې باضمیره افغانانوته اعتبارنلري

نړۍ کې دملګروملتونونړیوالې ټولنې کردارته نه یواځې افغانان دشک په نظرګوري بلکې د نړۍ مسلمانان یې کردار دمسلمانانوپه حق کې مشکوک بولي، اوکړه وړه یې داسلام او مسلمانانو پرضدګنې، په دې وجه دملګروملتونو په پریکړه لیک دلیل نیول چې افغانستان اشغال ندی له حماقت پرته بله توجیه نلري

بل نړۍ کې دملګروملتونودپریکړه لیکونو دمؤثریت حشر هم معلوم دی، چې خپلواک هیوادونه ورسره کوم برخورد کوي؟ که دملګرو ملتونوپریکړه لیکونه مؤثر وای،نوبیاولې ترننه اسراییل د تیرواویا کلوراهیسې دپریکړه لیکونوپوري ملنډې وهي؟؛ ،که دملګروملتونوپریکړه لیکونوواقعي اهمیت یاوزن لرلی نن به فلسطین ازادو، بیت المقدس به اسراییل خپله پلازمینه نه ګرځوله، فلسطین کې به دمسلمانانوپه زمکوکې غاصبو اسراییلیانو خپل کلي اونښارونه نه جوړول؛ ایا یواځې افغانستان لپاره دملګرو ملتونو پریکړه لیکونه تعمیلول اړین دي که په نوره نړۍ کې هم اهمیت لري ؟ ولې په هندي کشمیرکې دملګرو ملتونوپریکړه لیکونه هندوستان دتیرو څه باندې شپږلسیزوراهیسې ترپښولاندې پایمالوي؟ هغه غاصب اسراییل چې فلسطینیان یې دخپلو کورونو څخه وشړل، ملګروملتونو داسراییل پر ضد پریکړه لیک صادرکړ ایا ترننه پورې فلسطینیانوته دهغوی کورونه چا وسپارل؟

هو! ملګری ملتونه دامریکالاسپوڅې اوغلامه اداره ده؛ هره هغه پریکړه کوي چې امریکایې فرمایش ورته کوي، خپل اختیاراو واک قطعاً نلري، یواځې دنړۍ دمظلومو اوغریبوولسونودځملولو پخاطرېې رامنځته کړې دمسلمانانواوافغانانوخیرغوښتونکې اداره نده اونه هغه افغانان چې دزادضمیرڅخه برخمن دي، هغوی دملګروملتونو دجعلي اداري پریکړې ته درناوی لري، هغه خلک چې دملګروملتونو دپریکړه لیک په وجه افغانستان ته راغلي اشغالګر ؟ اشغالګرنه بولي دهغوی ضمیرونه اوفکرونه اشغال شوي اودازاداحساس او ضمیرنه محروم دي، بس هغه ببولالې وایي چې د دوی بادرانو ورته ښودلي

رازم دیته چې د [دوحې] بین الافغاني ناسته دافغانانو ترمنځ دافهام اوتفهیم یو ښه چانس و، په راتلونکي کې هم بابد ورته چانسونه او فرصتونه برابر شي اوهغه مشتراکات چې دوی یې لري وربانديې دې راټول شي څوافغانستان کې دسولې راتلولپاره پر واقعیتونوباندې داجتماعي فکر کولوفرصت ومومي، په سطحې لرلیدونودي قضایا نه شاربې، په دقت دي وڅېړې، څوهغه قوي خنډونه ټول په ګډه له منځه یوسي چې دسولې هیلې وژني

یوبله موضوع چې د[دوحې] په غونډه کې دځینو ګډونوالو لخواورباندې بحث شوی دبیان ازادي ده... هغوی داپوښتنه مطرح کړې چې ایا طالبان دبیان ازادي منې اوکه زندۍ کوي؟ دطالبانودریځ پخپل ځای.. موږ پرته دکوم نظر دملاتړ اوپلوۍ نه دبیان ازادۍ په اړه که واقعبینانه غوریافکرو کړوچې ایا رښتیا هم نړۍ کې دبیان ازادي هغسې شتون لري څنګه چې نغاره یې غږیږي؟ حقیقت دادی چې دبیان ازادي مطلقاً فراڼ او دوکه ده؛ هو! داسلامي ارزښتونو اومسلمانانو دتوهینولواوپر شرعي حکمونوپوري دملنډو وهلو ترحده دبیان ازادي په بشپړډول شته؟ خو ددینه علاوه دنړۍ په هیڅ هیوادکې دبیان ازادي مطلقاً نده... بلکې مقیده ازادي ده؛ ایا نن که یوڅوک راپورته شي اونړۍ کې داشورګډ کړي چې دنړۍ شتمنو سره شته پیسې اوشتمنۍ هغوی دخلکونه په چل اودوکه ترلاسه کړي! دا دعاموخلکو مال اوحق دی، راځۍ پورته شئ دشتمنوپه مالونو اوکورونو چورکډ کړو! لوټ او تالان یې کړوزکه هغوی دتجارت په نوم عام خلک تیرایستلي !اوس ترې اخلواوبیرته یې په عاموخلکوویشو! نوایا دابه دبیان ازادي وي اوکه نه؟ که وایي: ددې اجازت نشته چې څوک دې دبل مال چورکړي اوبیا دي هغه پر غریبانو وویشي؛ ددې دامعنی ده چې د بیان ازادي مطلقاً نده، چې دکوم قید اوشرط پرته ومنل شي اوس چې کله دبیان ازادۍ د مدعیانوسره په دې استدلال خبرې وشي هغوی خپله اعتراف کوي چې هو! خامخا ځینوقیدونو اوشرطونولګولوته اړتیا شته! اوچې کله

بیا دهغوی نه داوپوښتې چې دهغوقیوداتو اوشرطونو لګولو اساس به څه وي؟ اوڅوک به یې لګوي؟ اوځه ډول بـه داطـی کـوي چـې فلانی ډول بیان ازادې رواده اوفلانی ډول ناروا؟داتعین بـه څـوک کوي اوپر کوم بنسټ به یې کوي؟ بیا دمغرب د لویو،لویو ادارو چلونکوسره هم ځواب نه وي؛ کومو چې کلونه، کلونه دبیان دازادۍ په مشن کې تیرکړي، هغوی تراوسه په دې اساسي پوښتنه غورنـدی کړی چې اخردبیان ازادې په کوم اساس طی کول پکاردي؟

حقیقت دادی چې دبیان ازادې یوه مجمله ناره ده؛هیڅ اساس اوتفصیل نلري،نړۍ کې دلیک ازادۍ! اودویناازادۍ! نغاره غږیږي، خوددې لپاره یو داسې اساس چې دټولې نړۍ خلک پر هغه اتفاق ولري دهیڅا سره نشته اونه کیدای شي؟ له دې وجې کـه هرڅوک دغه اساس رامنځته کوي نوهغه به یې خپل سوچ،عقل اوچاپیرل تـه په کتو رامنځته کوي، اوهیڅ کله هم د دوه انسانانوعقل یوشان نـه وي، او نه دډوه ډلوعقلونه یوشان کیدای شي، خامخاترمنځ به یې توپیر وي زکه دبشرعقل خپل حدود لري، دهغونه بیرون کیدای نشي، او داپه نړۍ داسلام احسان دی چې ددې ټولومعـاملاتو دطـی کولو لپاره یې اساسات اینبي، دبشرهغه حقوق چـې دسـاتنې وړدي [لکه دانسان دځان حق، دمال حق، دابرواوپت حق) هغه یې په ګوته کړي اوهم هغه یې تعین کړي چې دساتنې وړندي

دبشري حقوقو په لړکې یوه غوښتنه داکیږي چې باید اکثریت پـه اقلیت حکومت وکړي، اکثریت ته دواک واګې وسپارل شي، چې ورتـه جمهوریت او دیمکراسي ویل کیږي، نن سبا پـه غـرب کـې دافلسـفه مقبوله ده چې دبشریت تاریک دورپه جمهوریت سره پای تـه ورسـیداو له دې وروسته دبشریت دعروج اوکمال بله نظریه نه منـدل کیـږي، لکـه موږ چې په ختم نبوت ایمان لرو مغربیـان دجمهوریـت نظریـه [خـاتم نظریـات] ګڼـي دهغـوی پـه نظـر دجمهوریـت نـه وروسـته بلـه نظریـه دبشریت دسوکالۍ لپاره نشي رامنځته کیدای.

خوکله چې هم داکثریت خبره چې دوی یې حق ګڼـي پـه الجزایرکـې دیوداسـې ګوندپـه بـري سره رابنـکاره شي چـې هغـه غربیانوته دمنلووړندی. هلته بیا اکثریت اوجمهوریت سملاسي دفن کوي داکثریت رایه یاپریکړه خطرتعبیروي..

رښتیا هم داناره وهل [ټولو انسانانوته دهغوی حقوق ورکـول پکاردي،هغوی ته دبیـان زادې ورکـول پکـاردي خلکوتـه خپلـواکې ورکول ضروري دي] په زړه پـورې ده، خوافسـوس چـې ددې نـارې وهونکې جهتونه نړۍ کې له خلکوازادې غصبوي، دهغـوی مالونـه اوشتمنۍ لوټوي، ورباندې جبراوتشدد کوي، هغـه خلـک چـې نـړۍ کې ددوی دظلمونواو وحشتونوپرضد غږپورتـه کـوي دهغـوی ژبـې پریکوې اوهمدا دجمهوریـت اودبیـان دازادۍ نغـاره وهـونکې هغـه څوک ځپي اودزندان دتورودراوازوشاته یې اچوي کوم چې ددینـي شعارپه بدرګه دجمهوریت لـه لارې واک تـه ورسي[ نویـواځې پـه ژبه داخبرې دي چې انسان ازاددی، او دانسانانو اکثریت حـق لـري چې پر لړه کیانوحکومت وکړي اوهرسړی دبیـان دازادۍ حـق لـري] په عمل کې نشته اونه نړۍ کې دبیان ازادۍ تـه ژمنتیـا لـري؟ کـه دجمهوریت حقیقت تـه راشـوپخپله دملګـرو ملتونـو دنړیوالوتـولنې تشکیل اواصول دجمهوریتضداوورسره ټکردي. زکه دا اداره یـواځې دنړۍ پنځه هیوادونـه ددې حقـدارګرځوي چـې دهغـوی نـه هریـویې کولی شي دټولې نړۍ رایې باطلې اوبې اثره وګرځـوي ،ټولـه نـړۍ یوخوا اودامنیت شوری دویټوپاورلرونکی یوهیواد بـل خـوا؛ دا حـق او اختیارلري چې هغه دټولې نړۍ درایې مخنیوی وکړي او هغه بې تاثیره کړي ! نوبیاڅه شوه هغه فلسفه چې وایي: اکثریـت پـه اقلیـت باندې دحکومت کولو حق لري؛ اصل خبره داده چـې دایـوه پلمـه ده، دنړۍ دبیرته پـاتې هیـوادو دځملولـو بهانـه ده، دهغـوی پـه شـتمنیو اوحقوقـو دخیټـې اچولودسیسـه ده،پـه حقیقـت کـې نـړۍ کـې نـه جمهوریت شته اونـه دبیـا ن ازادې، هغـه خلـک چـې دیمکراسـې؛ دیمکراسې نارې وهې اودبیان ازادۍ ازادۍ چیغې باسې هغـوی تـه پکارده خپلې سترګې خلاصې کړې اوپه پټوسـترګو دې دمغربیـانو تقلیدنکوي په رڼوسترګو اوراڼه بصیرت دې قضایا تحلیل اوتشریح کړي ممکن بیا دافغانانو ترمنځ دسولې لپاره دهغوی هڅې یوه حتمي نتیجه وموميي اوکه همداسې په پټوسترګودامریکا اواروپـا سـبقونه زوتوي ګومان نکوم چې دسـولې لپـاره دې ددغوجنابـانوهیلې مـون صادقانه اوواقعبیانه مسیرپیداکړای شي. پای



# رسنۍ، طالبان او د بیان آزادي... !!

موسی فرهاد

د رواني میلادي جون میاشتې پر۲۵مه نیټه، د اسلامي امارت د نظامي کمیسون له لوري د رسنیو په نوم یوه اعلامیه خپره شوه، چې پکې راغلي وو، (رسنۍ دې هغه ډول اعلانونه نه خپروي چې په روان جهاد، مجاهدینو او طالبانو پسې نازیبا پروپاګند کېږي، بد رد ورپسې ویل کېږي، د کورنیو او بهرنیو ځواکونو ځانګړې شمیرې خلکو ته اعلانیږي، ترڅو خلک د مجاهدینو جاسوسي ورته وکړي، نه باید چې د همدې ډول اعلاناتو په وسیله له رسنیو څخه استخباراتي استفاده وشي.

په اعلامیه کې زیاته شوي وه، چې دا ډول کړنې په هیڅ ډول مطبوعاتي رسالت نه، بلکه په څرګنده توګه له اسلامي او ملي نورمونو څخه بغاوت ګڼل کیږي، د اعلامیې په وینا، که چیري د یوې اونۍ په دننه کې ټولې محلي او غیر محلي FM اونورې راډیوګانې، تلویزیونونه او باقي رسنۍ له خپل دغه راز ناوړه عمل څخه دستبرداره نشي؛ نو مجاهدین به یې د خپلو نظامي اهدافو په کتار کې شاملي کړي، او هیڅ ډول مصئونیت به بیا ونلري (.

د دغې اعلامیې په وړاندې د کابل حکومت او میشتو بهرنیو ځواکونو او د دوی اړوند یو شمېر د آزادو رسنیو په نامه خبریالانو، جدي غبرګونونه وښودل چې، دا یوه طبعي چاره وه، ځکه چې همدا رسنۍ هغه وسیله ده چې د کابل حکومت او د هغوی بهرني ملاتړي یې د مجاهدینو پرضد کاروي او د خپل ځان په ګټه د پروپاګند کار تري اخلي، نو طبعي ده چې د دفاع رغ به یې هم دوی پورته کوي .

په هرصورت دلته اوس د څو ټکو یادوني ته اړتیا ده چې پوه شوو د بیان آزادي څه ده، او زموږ د هیواد رسنۍ ربښتیا آزادي دي، او طالبانو یې په وړاندې ولي ګوابښ وکړ؟

له ۲۰۰۱م کال وروسته افغانستان ته د اشغالګرو له راتګ سره د دیمکراسۍ ترعنوان لاندې داسي نو وارده سیستم زموږ هیواد ته را دننه کړل شو چې هرڅه یې د افغان ټاټوبي د ولسي مزاج سره په تصادم کې بریښي، همدا لامل دی چې له دومره پراخ تبلیغاتي کمپاین سره سره، پس له دوو لسیزو بیا هم قاطع اکثریت ولس دې ته آماده نشو، چې د اشغالګرو را وړل شوی د آزادۍ په نوم نوواردہ غربي سیستم په فکري لحاظ تسلیم کړي، لا بیا هم اشغالګر او د هغوی کورني اردلیان اړ دي چې د زور او زر په مټ هغه په ولس ومني.

په دغه نو وارده سیستم کې یوه هم آزاده میډیا ده، چې اشغالګر او د هغوی کورني حمایتیان یې تل د یوه دست آورد په توګه یادوي .

خو متاسفانه چې دغې آزادي میډیا زموږ ټولنې ته هغه څه په سوغات کې ورکړي چې د انساني او اسلامي فطرت له مخې باید آزاد ونه اوسي او پر هغه څه یې بیا قدغن لګول شوی چې هرو مرو باید آزاد، او خلکو ته ورکول شي. چې دا نو یو سرچپه آزادي شوه .

د دې خبرې تر مزيد سپيناوي وړاندې به لومړی د بيان د آزادۍ تعريف ته لږ تم شوو .

## د بيان آزادي

د بيان آزادي اصلاً يوه وسيله ده چې په دې سره د حق خاوند خپل ږغ د واکمن ترغوږونو پورې رسوي، د دغه تعريف پر بنا د بيان آزادي د هر انسان يو مشروع او روا حق بلل کيږي .

د بيان آزادي چې د نظر آزادي هم ورته ويله کيږي؛ د بشري حقونو په نړيوال قانون کې په رسميت پيژندل شوی بشري حق دی.

د اسلام مقدس دين ۱۴۰۰ کاله وړاندې د بيان او نظر آزادي ته معترف او تر ټولو ښه مثال يې مونږ د امير المؤمنين په هغې وينا کې ليدلی شو چې نوموړي د هغې ښځې د انتقاد په ځواب کې وفرمايل چې «اصابت امرأة و أخطأ عمر «..

حقيقت دا دی چې په اسلام کې تر بل هر اسماني او غير آسماني دين زيات د بشر حق ته زيات اهميت ورکول شوی او تر ټولو بيا زيات د حريت او خپلواکۍ، حق ورکول شوی دی .چې په دې کې د بيان آزادي هم راځي چې د بشر يو مسلم حق بلل شوی دی. مګر سره له دې هم نن سبا په دنيا کې  د غرب ديمکراتيکي آزادۍ ته ځيني خلک د بيان آزادي وايي او زموږ اسلام په دې تورنوي چې اسلام کې د بيان آزادي نشته، خو حقيقت داسي نه دی .

په اسلام کې د بيان او فکر آزادي دواړه شته خو په شرعي مقرراتو مقيدې دي.

مثلا په اسلام کې تر داخليدو وړاندې هرانسان ته حق ورکړل شوی چې هردين غوره کوي الله تعالی فرمايي : لا اكراه فی الدين ...

خو کله چې يوڅوک مسلمان شي، بيا يې عقيده، نظر، بيان او فکر ټول په شرعي محدوده کې را ايساريږي، هغه بيا نشي کولای له اسلام نه بهر کومه عقيده ولري، يا نظر ورکړي او يا يې هم په خلاف څه ووايي.

د بيان آزادي چې په عربي مصطلح کې ورته حرية التعبير، حرية الرأی او حرية المعتقد ويل کيږي؛ دا په سيکولرزم کې مطلق او په اسلام کې مقيد دي.

اسلام ځکه قيودات لګولي چې په اسلام کې چې هرڅه بشر ته ورکول شوي او يا تر منع کړل شوی؛ هغه صرف د بشريت د ګټې او نقصان پر آساس وي، د اسلامي فقهي عمومي قانون دی چې وايي « د الهي اوامرو او نواهي وو دواړو دارومدار د انسانانو پر نفع او نقصان موقوف وي» د بيان آزادي هم بشرته ترهغه بريده ورکول شوي چې د ده په خير وي، چيري چې يې په ضرر وي هلته اسلام تري منع کړی .

يعني شريعت هر انسان ته د وينا حق ورکړی خو په دې شرط چې پر نورو به په ژبه ناحقه تيری نه کوي، او د وينا د آزادۍ په پوښ کې به د نورو عيبونه نه لټوي، قذف، دروغ او ښکنځلي به نه کوي، بلکې پخپلې رايي او وينا سره به خلک په نيکۍ سره نيکو ته را بولي.

اما د لويديځ په ډيموکراسۍ کې د بيان د ازادۍ په نوم اصل شتون لري، مګر هغه په ټوله مانا داسي نه دی چې يو مظلوم دې د هغه په وسيله خپل حق وغوښتلای شي، بلکه له واقعي حق غوښتني پرته، هر څوک پرته له کوم قيد و شرطه د خپلې رايې اظهار کولا شي .

يعني مطلقه ازادي يې په هغه برخه کې انسان ته ورکړې چې هغه پخپل ذات کې د بشر په نفع نه وي، بلکې دا بيان که روا او که ناروا وي،  حق وي او که باطل خو هغه يې بايد ځرګندونه وکړي .

متاسفانه چې دا ډول ازادي نن سبا د مسلمانانو په هغو هيوادونو کې چې د غربې دموکراسۍ په تقليد نظامونه ورکې حاکم دي؟ په ښکاره ليدل کيږي چې خلک يوازې د باطل د اظهارولو حق لري او بس، او که څوک د حق رايه اظهار کړي هغه له وژلو، ترټلو، شړلو او ډول ډول تهديدونو سره مخ کيږي.

اسلام، نه يوازې دا چه د بيان د ازادۍ پلوي کوي بلکې هغه يو عبادت بولي او اظهار ته يې خلک تشويقوي، که څه هم هغه د يوظالم حاکم په مخکې خبره کول وي. « اِن من اعظم الجهاد کلمة حق عند سلطان جائر» الحديث. يعني غوره جهاد د ظالم باچا په وړاندې د حق خبره کول دی .

د پورتنۍ مختصري تشريح په رڼا کې موږ ويلای شو چې د بيان آزادي موږ د يو اسلامي نظام لپاره د يوې ثابتې پاليسۍ له مخې د يو منل شوي اصل په توګه پېژنو خو په ټولو هغو معيارونو نه، چې غرب ورته وضع کړي، او فقط د اسلامي ارزښتونو د له منځه وړلو لپاره تـرې کار اخلي.

د يوې اسلامي ټولنې په حيث، موږ بايد داسې د بيان آزادي ولرو چې يو رعيت او يا يو مظلوم په آزادانه ډول لـه حـاکم او يـا بـل ظالم شخه خپل حق د بيان د آزادۍ په وسيله ترلاسه کړای شي. نو آيا دا ډول آزادي په موجوده کې رسنيو کې ترسترګو کيږي کنه؟ !

رسنۍ د کومې آزادۍ پيروي کوي؟

لکه مخکې مو چې يادونه وکړه، زموږ په هيواد کې له نوواردە اشغالي ديموکراسۍ سره يوځای، ګڼ شمېر بې بندوباره رسنۍ هم رامنځ ته شوې، چې زياتره يې د پرديو سفارتونو په مالي سرچينو خړوبيږي، د دوی دعوا ده چې د بيان پر ريښـتيني آزادۍ بـاور لـري او د همدغـه اصل په رڼا کې رسنيز فعاليت مخ ته وړي،

مګر حقيقت بلکل داسې نه دی، دوی چې آزادي لري، په دې کې يې لري چې د آزادۍ د لارې مجاهد تـه ترهګـر ووايـي، جهـاد او د خپلواکۍ مبارزې ته ترهګري ووايي، اسلامي احکامات د تروريزم په تور ناکاره وګڼي، فحشاء، ډمې او ګـډا خپـرول د ټـولنې هـنري پرمختـګ وګڼي؛ د حق د لارې فدايي سرتيري ته ځانمرګی او اجرتي قاتل عسکر ته سرتيری ووايي، برحق فرض عين جهاد د پرديـو نامشـروع جګـړه وګڼي، د بهرنيو ځواکونو په دفاع کې د عسکرو مړينه د وطن لپاره قرباني وبولي، په تمثيلي پارچو او ډرامو کې پـر مـلي او اسـلامي ارزښـتونو ملنډې ووهي، د طالب ږغ او تصوير خپرول جرم، خو په ساعتونو ساعتونو د بربنډو سريـالونو وړانـدې کـول، خپـل رسـنيز رسـالت وګڼـي، د طالب په پلوي که کوم څوک يوه نيمه خبره په ګرديـو ميزونـو کـې کـوي، زنـدان تـه رسـول کيـږي، او د طالـب پرضـد چـې هـرډول کفريـات، ښکنځلې، او هر ډول تهمتونه ويل کيږي؛ د رسنيو لخوا آزادي ده .

پر دې برسېره د سوداګريزو خبرتياو په نامه د دښمن شمېرې اعلانول او له خلکو غوښتنې کول چې د مجاهـدينو پـه اړه مالومـات پـر دې شمېرو شريک کړئ، په خواله رسنيو کې د طالب خواخوږي جرم پېژندل کېږي، مرکزونو ته يې د بنـدولو پـه اړه رسـمي شـکايات تـرسره کيږي، هر ډول فاحشه او مبتذله موسيقي د رسنيو له څپو څخه خپريدل د بيـان آزادي ده، خـو د طالـب لـه خـوا ويـل شـوی، حمـد، نعـت، د وطن، آزادۍ او جهاد ترانې نشريدل څه چې په شخصي توګه که يې څوک واوري مجرم پيژندل کيږي .

دا او دې ته ورته نور ډېر موارد دي چې زموږ په هيواد کې د اشغالي دمکراسۍ تر وزر لاندې د را زيږيـدلې ميـډيا لپـاره د بيـان د آزادۍ اصل بلل کيږي .

په داسې حال کې چې دا رسنۍ ځان ناپيلې، بې پرې او د هر چا له پلوۍ ځان لرې ګڼـي، لـه هرلـورې د مصـئونيت تقاضـاوې يـې هـم روزمره غوښتنه وي .

نو کله چې دوی خپله ظاهراً د ناپيلتوب شعار زمزمه کوي، او په عين حال کې له مجاهدينو نه هم د همدې شعار پر بنسټ د مصـئونيت تقاضاوې لري؛ نو بيا خو د مجاهدينو دا مطالبه هم بې ځايه نه ده چې رسنۍ دې نو خپل مسئوليت هم وپيژني، څنګه چې شعار د نـاپييلتوب ورکوي؛ همداسې دې ناپيلې پاتې شي .

مجاهدين وايي، د دوی د خبر او نظر په خپرولو کې که رسنۍ ځان مجبور ګڼي، او نه يې شي خپرولای، نو لږ تـر لـږه دومـره خـو دې وکړي چې د اشغالګرو او د هغوی د تحت الحمايه رژيم په ننګه خو دې د جهاد، مجاهد، ملي او اسلامي ارزښتونو پرضـد لـه نـاوړه پروپاګنـد څخه لاس پرسر شي، که چيرې يې شعار د ناپييلتوب وي او ځان يوازې د کابل رژيم د اصولو پابند ګڼي؛ نو بيا دې د مصئونيت غوښتنه هم له مجاهدينو نه، نه کوي .

له همدې ځايه ده چې د پورتنيو ټولو تخلفاتو باوجود مجاهدينو صرف د ناسمو تجارتي اعلانونو له خپرولو رسنۍ منع کـړي، او خبره تر ګوابنده اعلاميو ورسيده .



# امریکايي تروریزم له افغانستانه

# د لابراتوار په توګه کټه اخلي!

سیف الله م

خبر:

ډونالد ټرامپ دوشنبه شپه له «فاکس نیوز» سره په یوه مرکه کې وویل، چې له افغانستانه د امریکايي نظامیانو د وتلو په باب د ده اندیښنه دا ده چې دغه هېواد به د «تروریستانو پر لابراتوار» بدل شي. ده په دغو خبرو اترو کې افغانستان «د تروریستانو هارواډ» پوهنتون وباله او زیاته یې کړه: «که امریکا له دغه هېواده خپل ځواکونه وباسي، بیا به هم په افغانستان کې یو ډېر قوي استخباراتي حضور ولري. ده همدارنګه زیاته کړه، چې نظامي قوماندانانو ورته ویلي چې د افعانستان په خاوره کې له تروریستانو سره مبارزه د امریکا په خاوره کې له هغوی سره تر جنګېدو غوره ده «.

تبصره:

اوس ټولو نړیوالو ته ثابته ده چې ترور او وحشت د امریکا د نظام په DNA کې اخښل شوی. څوک چې دا مسلم حقیقت په پام کې نه نیسي، یو ځل یې بیا د امریکا تاریخ لوستلو ته رابولو، ترڅو په مستند ډول وګوري چې امریکایانو په کوم ډول وحشت او ترور تر ۱۰۰ میلیونه زیات د امریکا سره پوټکي بومي خلک بشپړ له منځه یووړل. په دویمه نړیواله جګړه کې یې په اتومي بمونو هیروشیما او ناګاساکي څه ډول خاورې ایرې کړل او د ۲۲۰ زره کسانو پر وژلو سربېره سلګونه زره نور کسان د هغې غمیزې د تاثیراتو له امله په وروسته کلونو کې پر سختو ناروغیو اخته شول.

په دویمه نړیواله جګړه کې د امریکا او د هغې د متحدانو د هوايي ځواکونو الوتکو تر ۱۵ ساعتونو په کم وخت کې په څلورو بریدونو کې د المان پر «درسدن» سیمه ۳۹۰۰ ټنه قوي انفجاري بمونه او نور اور اچوونکي بمونه وغورځول، چې د ښار ۳۴ کیلومتره مربع ځمکه یې بشپړه ویجاړه کړه. د باتزن (د جمهوري ډیموکراتیک المان د پخوانیو سیاسي زندانیانو موسسه) د کمېټې غړي «ارهارد موندرا» د وینا له مخې: «د درسدن په نظامي سیمه کې د المان د پوځ د ګډې قوماندانۍ د پخواني افسر دویم سرهنګ دي ماتس د څرګندونو پر اساس ۳۵ زره قربانیان بشپړ وپېژندل شول، چې د ۵۰ زرو کسانو هویت یې تر یوه حده ښکاره شو، مګر شاوخوا ۱۶۸ زره نور کسان په هېڅ ډول د پېژندنې وړ نه وو«.

په ۱۹۵۵- ۱۹۷۵ کلونو کې د درې میلیونه ویتنامیانو په وژلو کې د امریکا ګډون، چې هر کال به یې ۵۰۰ زره بمونه د ویت کنګانو پر سیمو غورځول او د کیمیاوي موادو او ناپالم په وسیله یې ځنګلونه او کرنیزې ځمکې سوځولې او انسانان یې ژوندي کبابول. په ۱۹۵۰ کال کې یې سلګونه کوریایي ملکیان ووژل او په دوو وروستیو لسیزو کې یې تر دوو میلیونو زیات مسلمانان وژلي دي. ایا پوهېږئ چې امریکا تر اوسه څه ډول په لاتیني امریکا کې بحران، ترور او وحشت کړی او کوي یې او وروسته په هغو هېوادونو کې د مداخلو لپاره لار هواروي؟

دا د امریکا او ناټو ترووریزم دی، چې افغانستان یې نړیوالو ته د وحشت او ترور پر تیاتر بدل کړی دی. ټرامپ د خپلې وینا پر مهال یوه کلمه له یاده ایستلې چې وواییي، افغانستان «د امریکایي تروریستانو هارواډ» دی؛ ځکه د افغانستان جګړې د امریکایي جنرالانو استعداد او وړتیا داسې لوړه کړې ده چې ځینې یې د جنګي تجربې له تر لاسه کولو او د افغان مسلمانانو له وینو تویولو وروسته تر دفاع وزرات، د سي آی اې ریاست او نورو لوړو دولتي مقامونو پورې رسېدلي دي .

لکه څنګه چې دجال تل حقایق تحریفوي او ټرامپ هم د وخت یو ښکاره دجال دی. دا خبر یې واقعاً ناسمه او تحریفوونکې ده، چې افغانستان به د امریکایي ځواکونو له وتلو وروسته ممکن د تروریستانو پر لابراتوار بدل شي؛ ځکه افغانستان مخکې د امریکایي او غربي تروریستانو د ناکامو نظامي او سیاسي ستراتیژیو او وژونکو وسلو پر لابراتوار بدل شوی دی. په تېرو ۱۸ کلونو کې امریکایي ځواکونو په افغانستان کې داسې ترور او وحشت کړی، چې تر نیم میلیون زیات کسان یې پکې وژلي او ټپیان کړي دي او سلګونه زره نور په اروپا کې په سمندرونو او د کډوالو په کمپونو کې لارورکي دي. په دغه دوره کې امریکایانو مختلفې سپکې او درنې وسلې او نظامي تاکتیکونه د افغانستان پر خلکو تجربه کړي دي.

له طالبانو سره د سولې خبرو اترو په جریان کې د ټرامپ دا خبرې یو روښانه او اساسي پیغام لري، چې امریکا په افغانستان کې له دوو لسیزو وژلو او د ښارونو او باندېو له ورانولو وروسته هڅه کوي چې په دغه ډول غولوونکو خبرو د افغانستان په سیاسي راتلونکي کې خپل رول او نفوذ تضمین کړي او خپلې استخباراتي او قراردادي شبکې هم پیاوړې کړي .

## نا امیده خو نه یئ؟

نجم الدین ایوب له عراقه وشړل شو، هغه ته الله تعالی زوی ورکړ (صلاح الدین ایوبي)، هغه د مسلمان امت وتلی اتل وکرځېدی، چې وروسته یې بیت المقدس له صلیبیانو ازاد کړ!

سیف الدین قطز د خوارزم له هیواده وتښتیدی او ورک شو، عراق کې د غلام په توګه وپلورل شو، وروسته الله اسباب برابر کړل، د مصر واکمن شو او لومړی هغه کس و چې تاتاریانو ته یې د لومړي ځل لپاره ماتې ورکړه. قطز تاریخ د (عین جالوت) فاتح ثبت کړ !

د ترکانو القایي قبیله د مغولو له وېرې له ترکیې نه وتښتیدله، دې قبیله کې د عثمان ارطغرل (عثمان اول) وزیږیدی، د عثماني خلافت مؤسس چې څو سوه کاله یې په اسلامي نړۍ حکومت وکړ.

هیڅکله مه ناامیده کیږئ، الله به دا دین او دا امت ساتي، هر وخت چې دا دین په سختو حالاتو کې ایسار شي، هر وخت چې دا امت په ازمایښتونو کې راګیر شي؛ الله یې مرسته کوي او عزتمن کوي یې. وَلِلَّـهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُولِهِ وَلِلْمُؤْمِنِينَ.



# داعش

## او د امریکا وروستۍ تجربه... !!

ویس افغان

تقریباً شل کاله وړاندې د امریکا په مشرۍ د (ناټو) جنګي ځواکونو په داسي حال کې پر افغانستان یرغل وکړ چې په کور دننه یې د شمالي ټلوالي په نوم له ټوپکي ملیشو پرته، بله هیڅ کومه ځمکنۍ قوه نه درلوده، د همغو ملیشو په مټ امریکا او ناټو وکړای شول ټول افغانستان اشغال کړي .

د شمالي ټلوالي ملیشو داسي ګڼله چې ګویا د دغي مرستې په بدل کې چې له یرغلګرو سره یې وکړه؛ د افغانستان واک به په کلي ډول دوی ته وسپارل شي؛ خو امریکا داسي ونکړل، له لنډې مودې وروسته یې ملیشې بیرته له ښارونو څخه په یو او بل نامه شاته کړې، پرځای یې د ملي اردو او ملي پولیسو په نوم د نوي ځواک رامنځ ته کولو ته ملا وتړله.

د دریو څلورو کلونو په جریان کې یې څه باندې ۳ لکه په اصطلاح اردو تیار کړ، چې اکثریت یې بیا هم همغه ملیشې وې چې له یرغلګرو سره یې د راتګ پرمهال مرسته کړې وه، له دې سره امریکا داسي وګڼله چې ګویا هدف ته ورسیدل، نور به دوی په خپلو بیسونو کې په آرامه خپلي چارې پرمخ بیا یې او امنیت به یې همدا اردو ساتي.

خو دا اټکل یې هغه وخت ناسم ثابت سو چې دا مهال نو طالبانو هم خپل مجاهدین د چریکي مقاومت لپاره ښه اماده کړل، د هیواد په هر کونج او کنار کې یې دښمن په آسانه ترماشه لاندي کولای شوای، او د امریکا په لاس تیار کړل شوی ملي اردو یې د جګړې په ډګر کې ونګاوه، بهرنیانو بیا هم د آرام سا وا نه خیسته او بیرته له طالب سره د جګړې میدان ته را ووتل.

چې په دې سره یې طبعاً د ځاني تلفاتو ګراف هم پرمخ ښه په درز روان وو، په ۲۰۰۷م کال کې په افغانستان کې د امریکایي ځواکونو د مشر قومندان ډیویډ پیټریاس په ابتکار د کرایې ملیشه سازۍ یا اربکیزم د رامنځ ته کولو کار پیل شو.

چونکه دلته امریکا ته فقط د پیسو په بدل کې یو اجرتي قاتل پکار و، نور یې هیڅ ډول شالید او مخ لید ته نه کتل، له همدې ځایه وه چې د اربکي سازۍ په پروژه کې د هیواد تر ټولو بدترین غله، نشه یان، آزاریان او پوډریان پکي ورننوتل.

او دا پروژه پرځای د دې چې د امریکا آرمان پوره کړي، برعکس هم یې د پام وړ ډالر ورڅخه ووهل، او هم یې په ولس کې دومره نفرتونه ورته پیدا کړل چې ورپاتي ملت هم د یرغلګرو او د هغوی د لاسپوڅي رژیم په وړاندي د طالب ترڅنګ ودرید .

تر دې وروسته، ناخبره امریکایانو ته بله مشوره ورکول شوه چې د ملي پاڅون کوونکو او سنګوري ملیشو د رامنځ ته کولو چاري دې پیل کړي.

د دغي نوي ملیشې ځانګړتیا دا وه چې یو خو به یې طرز او سټایل داسي جوړ وي، لکه د مجاهد طالب، لنګوټې، ږیري او ساده جامې به لري، ولسي خلک به وربانديي تیر وزي چې ګویا دوی د امریکایي پروژې برخه نه دي. او د دښمنۍ ترحده به کرکه نه ورڅخه کوي .

مګر څرنګه چې دا د تېرایستلو یوه ماشومانه او ناکامه هڅه وه؛ دا چانس یې هم له پیل سره سم هغه وخت نیمګړی شو چې په هلمند کې د سنګوریانو سرغنه جبارکارمان مجاهدینو له منځه یووړ او ملیشې یې سره وپاشل شوي .

امریکایان له دې پروژې وروسته هم له جنګ جګړو څخه بیغمه پاتي نشول، دوی اړ وو چې په هر ډګر کې د طالب مقابلې ته پخپل هوايي او ځمکني ځواک ځان ور ورسوي. چې هرو مرو یې د درانه مالي زیان ترڅنګ ځاني تلفات هم زغمل .

په امریکا کې د ټرمپ له راتګ او بیا په ۲۰۱۷م کال کې د نوې جنګي ستراتیژۍ له اعلان وروسته امریکایانو بل کار ته لاس واچاوه؛ هغه دا چې د دوی په اصطلاح د طالبانو پر مشکوکو مراکزو او د طالبانو پر خواخوږو به د شپنیو چاپو او هوایي بمبارونو لړۍ پیلوي او د دې کار لپاره یې د کابل د استخباراتي اداري اړوند د ځانګړو ځواکونو قطعاتو ته مخه کړه.

هغوی یې نور هم ټرینډ کړل او مستقیما یې له پنټاګان سره وصل کړل چې قومنده، اعاشه او اوباته یې ټول له همغه ځایه صادریدل. افغان سیمه ایزو چارواکو په ځلونو ځلونو اعترافات کړي چې د ځانګړو ځواکونو له خودسره عملیاتو دوی هیڅ نه خبریږي.

ان دا چې یوځل په خوست کې د لویې عام وژني پرمهال ارګ یو پلاوی خوست ته ولیږه، خو د بی بی سي په وینا ویي نشو کړای چې د ځانګړو ضربتیانو له قومندان سره ولیدلای شي او یا له هغه نه د ولس وژني د خودسرانه عمل په اړه پوښتنه وکړي .

د امریکایانو له لوري د ځانګړو قطعاتو په وسیله د ولس ځوروني او وژني سلسله را وغځیده چې تراوسه پوري روانه ده او دوی یې د ځان لاس ته راوړنه ګڼي، د ملي امنیت مشاور حمدالله محب وویل، څه وخت وروسته به موږ د طالبانو ملا ماته کړو، خو حقیقت دا دی چې د دغه کار په نتیجه کې خپله د حکومت ملا د ماتیدو په حال کې ده، ځکه په دغو ړندو عملیاتو کې ۹۵٪ سلنه ولسي وګړي وژل کیږي. دا اعترافات په وار وار هم حکومتي چارواکو، هم بهرنیانو او هم آزادو بشري نهادونو کړي دي. له همدې امله د کابل اداره اوس د ملت له سخت نفرت سره مخ ده، چې دا پخپله د ملا ماتیدل دي.

د ملیشه سازۍ او د هغوی د تجربه کولو او استخدامولو په دې بهیر کې وار داعش ته ورسید چې د ۲۰۱۴م کال په وروستیو کې یې په افغانستان کې څرک ولګید، له جهاد، مجاهدینو، او افغان ولس له عقایدو سره د دغې تکفیري ډلي د ټکر نقطه د امریکایانو لپاره د پام وړ وګرځیده.

له همدې ځایه وه چې په عربي خلیج او بیا دلته په افغانستان کې امریکا د هغوی په اکمالاتي تعقیب پسي شوه، ترڅو یې د خپل دښمن مجاهد پرضد وکاروي، په افغانستان کې یې د داعش پالنه او ساتنه هم پخپله پیل کړه او هم یې خپلو کورنیو اردلیانو ته د هغوی د ساتني او پالني دنده وسپارله .

تر دې چې په ځلونو ځلونو یې د مجاهدینو له محاصرې څخه په خپلو الوتکو کې ژغورلي او بیرته یې په بله سیمه کې ځای پرځای کړي دي،

له داعش څخه د دوی ننګه اوس اظهر من الشمس ګرځیدلې، په لسهاوو ځله د کابل حکومتي چارواکو علی الاعلان د داعش د ملاتړ رازونه را برسیره کړي. یعني دا اوس په یو ښکاره حقیقت بدل شوی .

نو مطلب دا چې داعش د امریکا لپاره وروستۍ حربه، او ملیشه ده چې د مجاهدینو په وړاندي یې د عمل په میدا ن کې تجربه کوي، امریکا هیله منده ده چې که نوري ټولي پروژې یې د طالب په وړاندي بریالۍ نه شوي، ښایي چې همدا ورستۍ هیله یې پوره شي .

په داسي حال کې چې د دوی په لاس تربیه شوي منظم پوځ یې د طالب د برحقي داعیې او بې ساري سرښندني په وړاندي له مقاومته عاجز شو، نو داعش غوندي رټلې، شیطاني ډله، چې له هر پلوه په افغان جامعه او جغرافیه کې د پښې ایښودلو چانس نلري؛ هغه به څنګه وکړای شي چې د طالب په وړاندي ټینګ شي، او د امریکا وروستۍ هیله ورپوره کړي،؟ هیڅکله نه .

# د شهید قوماندان عزیز خان

## ژوند او کارنامو ته کتنه

قاري عبدالستار سعید

زموږ هیواد په خپله ویاړمنه غیږ کې د توریالیو غازیانو او تاریخي رجالو ترڅنګ ډیرې داسې مجاهدې کورنۍ لري چې خپل ټول ژوند او هستي یې د پاک دین اسلام دفاع او له کفري یرغلګرو د اسلامي هیواد د خپلواکۍ ګټلو مبارزې ته وقف کړې وي.

د داسې کورنیو له جملې یوه هم د مرحوم حاجي جهان اکا جهادي کورنۍ ده چې د کمونیستي کودتا او شوروي یرغل له وخته راونیسه بیا تر اوسني امریکایي اشغال پورې نسل په نسل یې د جهاد سنګرونه تاوده ساتلي او په پوره میړانه او متانت یې له دیني مقدساتو دفاع کړې ده. د دې کورنۍ یو تن وتلی مجاهد شهید قوماندان عزیز خان و چې دلته به یې لنډ ژوندلیک درسره شریک کړو. خو د شهید عزیزخان له شخصي ژوندلیک وړاندې به د نوموړي په جهادپاله کورنۍ، د سرخګان جبهې او قهرمان غازي شهید ملا مدد خان په اړه لنډ معلومات درسره شریک کړو تر څو درته هغه جهادي پس منظر روښانه شي چې د شهید عزیز خان په شان ګڼ شمیر غازیانو په کې جهادي روزنه ترلاسه کړې وه.

د شهید ملا مدد خان جهادي کورنۍ او د سرخګان جبهه

مرحوم حاجي جهان اکا د پښتنو د ترکي قوم له بدین خیل پښې څخه و، چې له کمونیستي انقلاب وړاندې یې د افغانستان په جنوبي ولایاتو ( خصوصا زابل) کې کوچیانی ژوند درلود. دوی به ډیر وخت د زابل ولایت د مرکز کلات په مربوطاتو کې اوسیدل. حاجي جهان اکا چې یو متدین او غیرتي سپین ږیری و، الله تعالی ورته ۸ زامن نصیب کړي وو چې نومونه یې په ترتیب سره په دې ډول دي. حاجي داروخان، شهید ملا مدد خان، شهید عزیز خان، شهید حبیب خان، امیر خان حقاني، عظیم خان، محبوب خان او عبدالله .

حاجي جهان اکا خپل دوهم زوی ملا مدد خان چې الله تعالی د سیرت او صورت په ښکلا نازولی و دیني علم ته وقف کړی و او د ثور له کمونیستي انقلاب مخکې یې د زابل ولایت په بیلابیلو کلیوالو مدرسو کې دیني زده کړې کولې. کله چې د ۱۳۵۷ هـ ش کال د ثور په اوومه نیټه کمونیستانو کودتا وکړه او دهري نظام حاکم شو. ملا مدد خان دغه وخت د خپل عمر شل کاله پوره کړي وو چې د زابل ولایت په جلدک سیمه کې یې د شیخ ملا اختیار اخند سره دیني کتابونه ویل.

د کمونیسانو له کودتا وروسته د افغانستان په جنوب کې د جهاد بنسټګر شهید ملا موسی کلیم آخند د زابل له ولایته جهادي مبارزه پیل کړې وه او په بیلابیلو سیمو کې یې په کمونیستانو بریدونه کول. طالب العلم ملا مدد خان چې جهادي جذبه یې درلوده له ملا موسی کلیم سره ملګری شو، خو دا چې هغه وخت وسلې ډیرې کمې وې، کله چې مجاهدینو د شهر صفا ولسوالۍ په مرکز حمله کوله. ملا مدد خان له چاقو سره په دې عملیاتو کې برخه واخیسته او د ولسوالۍ د فتحې په وخت یې په چاقو باندې دوه تنه خلقي عسکر تسلیم او وسلې یې ترې یووړې.

په دې ډول ملا مدد خان ډیر ژر د مجاهدینو تر منځ د یوه زړور، متدین او با استعداده غازي په حیث شهرت وموند. هغه وخت چې ملا موسی کلیم او مرستیال یې ملا عبدالغفور نیازي د کلات جنوب ته د سور غر په سرخګان سیمه کې جبهه جوړه کړې وه، ملا مدد خان د یوه تکړه او بریالي ګروپ مشر په حیث ورسره جهادي ملګرتیا پیل کړه.

په ۱۳۵۹ لمريز کال کې د ملا موسی کليم او ملا عبدالغفور نيازي له شهادت وروسته قومندان غياث الحق د سرخگان د جبهې آمر او ملا مدد خان يې د معاون په حيث وټاکل شول، له همدې وخت ملا مدد خان د معاون مدت يا معاون په نوم شهرت وموند چې تر اوسه په همدې نوم يادېږي. د سرخگان جبهه نه يوازې د زابل ولايت په سطحه بلکې د افغانستان د ټول جنوب او جنوب غرب حوزې په سطحه يوه له مهمو او تاثيرگذارو جهادي جبهاتو گڼل کيدله. په زابل سربيره د شاوخوا ولاياتو گڼ شمير مخکښو مجاهدينو لکه د کندهار قومندان عبدالرزاق او د غزني قاري عبدالله دانش په پيل کې په همدې جبهه کې جهاد کاوه. د دې جبهې د عملياتو اصلي سيمه د زابل مرکز کلات او له دې ولايته تيره شوې د کابل ـــ کندهار لاره وه. چې له شاجوی بيا تر شهر صفا پورې په مختلفو سيمو کې مجاهدينو وربانديې کمينونه نيول او په شوروي يرغلگرو يې بريدونه کول.

د جبهې مرستيال او نظامي قومندان ملا مدد خان هغه باتور، زړور او باتدبيره مجاهد و، چې په ډير کم وخت کې يې په ډول هيواد کې د جهادي کارنامو آوازه خپره شوه. د نوموړي تر مشرۍ لاندې زرگونه مجاهدين د شوروي اشغال پر خلاف جهاد ته آماده شول، تر دې چې د نوموړي جبهې به په يو وخت تر ۲۵۰۰ زيات مسلح او فعال مجاهدين درلودل چې په بيلابيلو سيمو کې يې په شوروي اشغالگرو بريدونه کول.

قومندان ملا مدد خان د شوروي ضد جهاد له سترو مجاهدينو گڼل کيږي چې په تاريخ کې به يې نوم د ستر اتلانو لکه مولوي جلال الدين حقاني، د هلمند ملا محمد نسيم اخندزاده، د کابل مولوي شفيع الله او د هيواد په بيلابيلو سيمو کې د نورو مخکښو جهادي مشرانو په کتار کې يادېږي. دا لنډه ليکنه شايد د دې لپاره کافي نه وي چې د نوموړي د وياړمن جهاد سترې کارنامې په کې راونغښتل شي. نوموړی چې وروسته د سرخگان جبهې د مشر په حيث وټاکل شو په خپله څو کلنه جهادي مرحله کې يې سترې کارنامې ترسره کړې. هغه به درست کال د کمونيزم پر خلاف سنگر کې اوسيده او په درست کال کې به محدودې ورځې خپل کور ته ستنيده. نوموړی به خپله د جهادي عملياتو برخوال او تر نورو مخکې روان و. نوموړي يو ځل د کلات امنيه قومنداني او يو ځل د ولايت غونډ فتحه کړل او دښمن ته په درنو تلفاتو سربيره يې ډير غنائم هم ترلاسه کړل. د لويې لارې پر سر د تازي په سيمه کې چې د شورويانو لوی کنډک پروت و او څو ولاياتو ته ترې اکمالات کيدل دغه سيمه د شهيد ملا مدد آخند د جهادي معرکو اصلي ډگر و چې بې شميره روسان يې د خپل عمل په سزا ورسول .

د الله تعالی د لارې دغه مخلص او فداکار مجاهد بالاخره په ۱۳٦٦ هـ ش کال کې د روسانو سره په مخامخ جگړه کې په شهادت ورسيد .

## قومندان عزيز خان د جهاد په سنگر کې

د شهيد ملا مدد خان له شهادت وروسته د نوموړي پلار حاجي جهان اکا د دې په ځای چې جهادي عزم يې کمزوری شي او له جهاده لاس واخلي، د خپل زوی د جهادي سنگر او جبهې پاللو ته يې خپل درې زامن عزيز خان، حبيب خان او امير خان حقاني وړاندې کړل. چې بيا يې د شوروي ضد جهاد تر پايه دغه جهادي سلسله په ډير ښه ډول وپالله.

قومندان عزيز خان د حاجي جهان اکا دريم زوی او د شهيد ملا مدد خان کشر ورور و. نوموړی په ۱۳۳٦ کال کې په زابل ولايت کې دنيا ته راغلی و. د کشرتوب او ځوانۍ عمر يې د دنيوي ژوند په خواريو او کسب و کار کې تير شوی و. د شهيد ملا مدد خان د شهادت په وخت نوموړی په ايران کې مسافر و او دنيوي کاروبار يې کاوه. د خپل مشر ورور له شهادت وروسته کور ته راستون شو، ورپسې جهادي سنگر ته لاړ او له څوکاله جهادي خدمت وروسته يې په ۱۳٦۹ هـ ش کال کې د جهادي جبهې مسؤليت په غاړه واخيست.

قومندان عزيز خان د خپل ورور په شان د سرخگان جهادي جبهه په ډير ښه شان وپالله، د کمونيستي واکمنۍ د سقوط تر وخته يې په زابل ولايت، خصوصا د کلات مربوطاتو کې جهادي بريدون ته دوام ورکړ. بيا بيا يې د کمونيست رژيم پوستې او مراکز فتحه کړل. خو د نوموړي د جهادي ژوند يوه مهمه کارنامه د کمونيست مليشه جنرال عبدالجبار قهرمان د قوې په وړاندې

مقاومت و چې د زابل ولایت د مرکز کلات د محاصرې ماتولو په مقصد یې له کندهاره زابل ته ځواکونه راوستي وو.

د ۱۳۷۰ هـ ش کال په منی کې د ډاکټر نجیب رژیم چې پرلپسې یې ولایتي مراکز له لاسه ورکول اراده وکړه چې د زابل مرکز کلات ښار د مجاهدینو له کلابندۍ وژغوري. د همدې لپاره یې د جبار قهرمان په مشرۍ یوه لویه قوه چې په سلگونو پوځي موټرو او زرگونو عسکرو مشتمله وه له کندهاره زابل ته ولیږله. د زابل او کندهار مجاهدینو له شهر صفا بیا تر کلات پورې د لارې په اوږدو کې دې قوې ته کمینونه نیولې او هر ځای یې سخت بریدونه پرې وکړل. قومندان عزیز خان د جلدک په ساحه کې د مجاهدینو مشري په غاړه درلوده چې د جبار قوې ته یې درانه تلفات واړول. د مجاهدینو د همدې ځپونکو گوزارونو له امله د جبار ستره قوه ماته سلگونه موټر یې تخریب یا غنیمت شول او خپله جبار قهرمان په ډیر بد وضعیت کې له ساده کالیو په استفاده د جگړې له ډگره وتښتید.

د همدې کال له پای ته رسیدو او د نوي کال ۱۳۷۱ لمریز له رابریدو سره د ډاکټر نجیب کمونیست رژیم هم ونړید. د همدې کال د ثور په اتمه واک له کمونیستانو مجاهدینو ته انتقال شو. خو ځینو جهادي رهبرانو د یوه صالح او سالم اسلامي نظام د جوړولو په عوض خپلمنځي جگړو او فساد ته مخه کړه. په هیواد کې سرتاسري فساد او گډوډي پیل شوه، د ټوپکمارۍ او پاټکونو دوران پیل شو او افغانستان له یوه بحرانه د خلاصون خوند نه و څکلی چې په بل بحران ورپیښ شو. قومندان عزیز خان د تنظیم بازۍ په کلونو کې په خپله سیمه کې اوسیده. د خپل واک په ساحه کې یې څوک پاټکونو او گډوډۍ ته نه پریښودل تر دې چې د طالبانو اسلامي تحریک پیل شو .

**له اسلامي تحریک سره پیوستون او خدمتونه**

هغه وخت چې په کندهار کې د امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد لخوا د فساد او فتنو په وړاندې د طالبانو اسلامي تحریک پیل شو او د پنجوایي او میوند له تصفیې وروسته یې په ډنډ ولسوالۍ کې مرکز جوړ کړ. د دې تحریک اوازه شاوخوا سیمو ته هم خپره شوه. همدغه وخت قومندان عزیز خان کندهار ته لاړ او هلته یې له ملا محمد عمر مجاهد سره وکتل، په دې کتنه یې کې له طالبانو سره خپل پیوستون اعلان کړ. وروسته چې طالبانو کندهار ښار او نورې سیمې ونیولې او تر زابله ورسیدل. قومندان عزیز خان د خپل جبهې ټولې درنې او سپکې وسلې چې څلور فیره ستینگر او څو ټانگونه هم په کې وو طالبانو ته وسپارل. قومندان عزیز خان د ملامحمد عمر مجاهد له توصیې سره سم خپل مجاهدین د اسلامي تحریک په صف کې شامل او تنظیم کړل او له همدې ځایه یې د یوې فعالې ډلگۍ په حیث په اسلامي تحریک کې جهادي وظیفه پیل کړه.

قومندان عزیز خان سره له خپلو مجاهدینو د غزني او میدان وردگو په فتوحاتو کې بارز نقش درلود. وروسته چې په میدان ښار کې جنگي خطوط رامنځته شول. نوموړي ډیره موده د ملا مشر آخند د مرستیال او څه موده د جنگي کربښې د عمومي مسؤل په حیث دنده اجراء کړه. د میدان ښار د جنگونو په مهال نوموړي اکثره وخت په جنگي خط کې و. بیا بیا یې د دښمن د حملو په دفاع کولو کې مهم نقش درلود. همدلته یو ځل ټپي هم شو چې له شفا یابۍ وروسته بیرته خپلې جهادي وظیفې ته ستون ستون شو.

په ۱۳۷۵ هـ ش کال کې کله چې د طالبانو ستر لښکر د کابل د فاتح شهید ملا بورجان آخند په مشرۍ د پلازمینې کابل د فتحې عملیات ترسره کړل. قومندان عزیز خان له خپلو ملگرو سره د میدان ښار له اړخه کابل ښار ته ننوت. په کابل کې په پیل کې د شر او فساد د عناصرو د تعقیب په مقصد د کابل شمال ته د گلدرې تر سیمې لاړ او په همدې ځای کې یې خپل نظامي ملگري ځای په ځای کړل. وروسته د امارت د مشرتابه په حکم نوموړی د قرغې د اتمې پلې فرقې د قومندان په حیث وټاکل شو. چې د مجاهدینو قرارگاه یې همدغه فرقه او جهادي وظیفه یې د شمالي په جنگي کربښو کې ترسره کوله.

قومندان عزیز خان د میدان ښار غوندې د شمالي په جنگي کربښو کې هم په ډیره میړانه خپله وظیفه ترسره کړه. د کابل له فتحې لږ موده وروسته کله چې د زاړه سرک په استقامت د جنگي کربښې قومندان ملا خان محمد شهید شو پر ځای یې ملا عزیزخان د دې کربښې مسؤل وټاکل شو. د پروان ولایت د فتحې

په عملیاتو کې نوموړي مهمه کردار اداء کړ او تر سالنګ پورې یې پرمختګ وکړ. په سالنګ کې د دښمن په یوه ناڅاپي برید کې اسیر شو. څو څو ساعته وروسته چې کله مجاهدینو بیرته په دې سیمه برید وکړ قومندان عزیز خان او نور نیول شوي ملګري یې ددښمن له منګولو ازاد شول .

**شهادت او وروستی دمه ځای یې**

قومندان عزیز خان له اوږده جهادي ژوند او مخلصانه خدمت وروسته د ۱۳۷٦ هـ ش کال په لومړیو میاشتو کې د کابل شمال ته د کاریز میر په سیمه کې هغه وخت د راکټ په مرمۍ ولګید او شهید شو کله یې چې پر کابل ښار دمسعود او نظار شورى د ټوپکیانو د لوی یرغل دفاع کوله. له شهادت وروسته د نوموړي جسد خپلې سیمې ته راوړل شو او د سرخګان د شهیدانو په هدیره کې د خپل ورور شهید ملا مدد خان ترڅنګ خاورو ته وسپارل شو.

د سرخګان د شهیدانو هدیره د افغانستان په سطحه یوه له لویو جهادي هدیرو ګڼل کیږي. په دې هدیره کې د روسانو او امریکایانو پر خلاف جهاد کې شهید شوي مجاهدین دفن دي. چې له جملې یې یوازې د روسانو پر خلاف د سرخګان د جبهې د شهیدانو تعداد ۷۸۰ ته رسیږي. چې د اوسني جهاد شهیدانو سره اوس د دې هدیرې د ټولوشهیدانو تعداد تر ۱۰۰۰ هم اوړي.

د شهید قومندان عزیز خان له شهادت وروسته یې جهادي مسؤلیت ورور حبیب خان ته وسپارل شو، چې څه موده وروسته هغه هم شهید او پر ځای یې قومندان امیر خان حقاني صاحب د نوموړي ځایناستی او د قرغې د اتمې فرقې قومندان وټاکل شو. امیر خان حقاني صاحب چې همدا اوس د اسلامي امارت د رهبري شورى غړیتوب لري او د نظامي کمیسیون د مرستیال په حیث یې هم ډیر وخت دنده اجراء کړې ده، د خپلو مشرانو وروڼو شهید ملا مدد خان، شهید عزیز خان او شهید حبیب خان تګلاره یې په ډیر ښه ډول پاللې او د امریکا جهاد کې د پام وړ کردار او نقش لري.

د شهید عزیز خان نږدې ملګري ملا عبدالغفور اخندزاده، ملا محمد شفیق او ملامحمد نواب د نوموړي د ښو صفاتو د یادونې په لړ کې وایي. چې قومندان عزیزخان له مثالي زړورتیا او دلاورۍ سره سره ډیر ښه اخلاق درلودل. له عامو خلکو سره یې ډیره ښه ګوزاره کوله. په جنګي امورو کې د ژور تدبیر خاوند و. همدا لامل و چې اسلامي امارت همیشه ورته درانه نظامي مسؤلیتونه سپارل. نوموړي د خپل مشر جهادي مسیر په ډیر اخلاص سره پاله او د في سبیل الله جهاد په لاره کې یې له هیڅ راز قرباني څخه دریغ نه کاوه. له نوموړي څخه درې زامن پاته دي چې یو زوی یې د امریکایانو خلاف جهاد کې د شهادت لوړ مقام ته رسیدلی دی.

نحسبه کذالک والله حسیبه .

رحمهم الله و تقبلهم ... آمین یا رب العلمین






# د اسلامي امارت د فرهنګي کميسيون
# وياړونه او خدمتونه!

**ليکوال: عطاالله مبارز**

مطبوعات او رسنيز فعاليتونه د يو نظام د بقا او پاينښت لپاره خورا مهم او حياتي وي او دغه راز راتلونکو نسلونو ته هم د يو لاښود حيثيت لري. کومه پيښه، وينا او يا د چانوم چې د قلم په څوکه د کاغذ پر تنده خال شي، هغه مهال بيا د تاريخ يوه برخه وګرځي او له زرګونو کلونو وروسته هم د خلکو د ګټې وړ وي. اوکه نه ليکل شي بيا د وخت په توپاني څپو کې د تل لپاره ورکه شي.

د افغانستان د اسلامي امارت په تشکيلاتو کې فرهنګي کميسيون يو له مهمو ادارو څخه دی، د خپلې واکمنۍ پرمهال، له واک وروسته د اشغال له پيله يې ترنن ورځې، هڅې او فعاليتونه په ډېر برياليتوب مخ په وړاندې روان دي.

فرهنګي کميسيون د هيواد او نړۍ په کچه د اسلامي دعوت، له اسلامي او افغاني کلتور او ثقافت څخه د دفاع او د خپلې حقې داعيې د رسولو برخو کې په پښتو، فارسي، عربي، انګليسي او اردو ژبو د مجلو، ويب سايټونو او نورو لارو په ښه خپل خدمات وړاندې کوي.

چې له ډلې يې د اسلامي امارت رسمي ويب پاڼه (الاماره)، څرک، شهامت، مرچل، الصمود، شريعت او حقيقت مجلې خپرېږي، چې د ګران هيواد، سيمې او نړۍ په وروستيو حالاتو پکې د هيواد د بااحساسه ليکوالانو په زړه پورې او ارزښتناکې ليکنې نشرېږي. دغه راز د الاماره، منبع الجهاد او الهجرة ستوډيوګاني په بيلابيلو ژبو د مجاهدينو دبرياو ژوندۍ صحنې او صوتي مواد خپروي.

له دې ټولو رسمي فرهنګي فعاليتونو سره هممهاله په سلګونو فيسبوک او ټويټر پاڼې شتون لري چې له کلونو راهيسې ځينې په دين، هيواد او ازادۍ مين ځوانان په غير رسمي توګه د مجاهدينو د برياوو او د دوښمن د ماتې خبرونه د هيوادوالو ترغوږونو رسوي چې واقعا يې هڅې د ستايلو وړ دي.

په دې وروستيو کې فرهنګي کميسيون يو بل ابتکار (د تاليف او ترجمې) څانګه پرانيستې چې په ډېر لږ وخت کې يې ګڼ شمېر کتابونه چاپ او د خپلومينوالو ترلاسونو رسولي دي،

چې د دې لړۍ وروستۍ کتاب (اسلامي امارت مونږ ته څه راکړي) په نوم تازه له چاپه راغلی. دې کتاب کې چې د محترم نور احمد سعيد له لوري اهتمام شوی، د اسلامي امارت د ويندويانو(ذبيح الله مجاهد صاحب او قاري يوسف احمدي صاحب) په ګډون د هيواد د تکړه ليکوالانو او څېړونکو ۲۳ مقالې او مضامين په ۱۸۵ مخونو کې پر سپين کاغذ پر ښه صحافت چاپ شوي دي.

غواړم چې په ياد اثر کې د يو څو خپرو شويو مقالو ځينې برخې درسره شريکې کړم :

د اسلامي امارت محترم وياند ذبيح الله مجاهد (د فساد او شغال ضد جهاد او د امارت مثالي رهبري) ترعنوان لاندې په خپله مقاله کې کې کاږي:

۱۴۱۵هـ کال: کله چې په افغانستان کې کمونيست پلوه رژيم وپرځيد او پر ځای يې مجاهدين په کابل رامات شول، په څو مياشتو کې نژدې ټول افغانستان د تنظيمي شخړو په ډګر بدل شو، په هر ولايت کې تنظيمي قومندانانو پاټکونه ايجادکړل. د خلکو پراخ ځورول، مالونه لوټل، عزت لوټل، دخلکو په ناموس تجاوزونه کول، په شخصي حريمونو بريد او هرهغه څه پيل

شول چې انسانيت يې په بدۍ او ظلم يوه خوله دی.

د هيواد مرکز کابل کې د قدرت پنځه لويې جزيري جوړشوې،

د کابل ارګ او خيرخانه کې د جمعيت اسلامي او شوراي نظار ډله، د کابل جنوب چهارسياب او چهلستون کې د حزب اسلامي ډله، د کابل ځينوبرخو کې دوستمي (ګلمجم) مليشو ډله او د پلازمينې يوه وړه برخه کې د سياف په مشري د اتحاداسلامي ډله.

دغه ډلې هره ورځ له سهاره تربيګا دکابل ښارکې ښي په خرپ سره وجنګيدې.

نه د بيارغونې څرک و، نه د تعليم او تربيې درک و، نه د عزت او عفت د ساتلو تصور و، نه هم د سر او مال د امن او امان خيال. دا چې د هيواد مرکز کابل بې امنه و حکومت عملا وجود نه درلود. هرڅه دکنترول اوکابو څخه بهرو نو طبعا په ولاياتو کې هم مطلقه خپل سري.انارشي او ملوک الطوائفي حاکمه وه.

په دغه حساس اوخورا کړکيچن وخت کې دکندهار ولايت له سنګحصار سيمې څه يوپخواني جهادي قومندان اوس په ديني زدکړو بوخت طالب (اميرالمؤمنين ملامحمدعمر مجاهد رحمه الله) له خپلو ځومحدودو ملګرو سره وضعيت دکنترول په اړه سلا اومشورې پيل کړې.

مشهورو سيميزو ديني عالمانو دحالاتو دکابوکولو دپاره دنظامي اقدام فتوا ورکړه څه مخلص ملګري يې راټول کړل اودحالاتو دکابو کولو له پاره يې د ۱۴۱۵هـ کال د محرم د مياشتې په ۱۵مه نيټه د طالبانو اسلامي تحريک پيل کړ.

ځوان اسلامي امارت ته ترهرڅه وړاندې هيواد ته امن راوستل او دلته شرعي نظام او حدود پلي کول مهم ښاريدل.

ځکه شرعي نظام د شوروي ضدجهاد د يونيم ميلون شهيدانو ميراثي ارمان و چې پالل يې غوښتل.

(اسلامي امارت د هيواد ځمکنۍ بشپړتيا څرنګه وساتله) ترعنوان لاندې د ليکوال او د سياسي چارو د کتونکي م.عتيق الله عزيزي ليکنه ده،

محترم عزيزي په خپله ليکنه کې د ګران هيواد له تجزيې د ژغورلو په اړه ژور بحث کړی، نوموړي د خپلې مقالې په يوه برخه کې ليکي:

"د (هيواد له ارضي تماميت سره د اسلامي امارت د وفا او مينّ راز) که څوک له تعصب او کرکې څخه کار وانخلي نو په دې به پوه شي چې اسلامي امارت د خپلې تيرې د وري پرمهال نه داچې د افغانستان له لويشت لويشت ځمکې څخه کلکه دفاع وکړه او په ټوله معنا يې ارضي تماميت خوندي کړی و، ورسره يې د افغانستان ګاونډيان هم په ارام کړي و او د متقابل احترام په بنايې ورسره ښه او نيک چلند درلود.

د اسلامي امارت د تيرې او پوره واکمنۍ پر مهال هيڅا ثابته نه کړه او نه يې اوس څوک ثابتولي شي چې له افغانستان څخه دې د نورو هيوادونو په امورو کې ګوتې وهل شوي وي.

تردې پورې چې کله د ۲۰۰۱ ميلادي کال د سپتمبر په ۱۱مه نيټه په امريکاکې کومه پيښه وشوه او پړه يې د يوې توطئې له مخې په اسامه بن لادن واچول شوه، اسلامي امارت په مسؤلانه توګه امريکاته وويل که چيرې هغوي په نوموړي پيښه کې داسې کره شواهد لري چې اسامه بن لادن پکې دخيل او پړ وبلل شي؛ نو موږ تياريو چې په خپلو محاکمو يا د دريو نورو اسلامي محاکمو په محکمو کې دغه موضوع څيړلو او ارزولو ته وړاندې کړو.

(د افغانستان اسلامي امارت ولې او ځنګه رامنځته شو) ترسليک لاندې د ليکوال، شاعر او د سياسي چارو شنونکي قاري سعيد زرمتي ليکنه ده،

چې د ليکنې په يوه برخه کې يې راغلي دي: " اسلامي امارت څنګه رامنځته شو؟

اسلامي امارت د بل هر سياسي او يا جهادي خوځښت په شان په تيرو ۲۵کلونو کې خپل بشپړتيايي ياتکميلي مراحل طي کړي چې دغه بهير په دري مراحلو تقسيمولي شو :

لومړۍ د تأسيس مرحله:

د فساد او هرج مرج په ورانـدې لومړني خوځښت د ۱۳۷۳لمریز کال د اسد په میاشت کې د کندهار د میوند ولوسوالۍ دذسنګ حصار له سیمې د مرحوم

ملامحمدعمرمجاهد په مشرې پیل شو.

دوهمه دواکمنۍ مرحله:

د ۱۳۷۵ لمریز کال په لومړیو کې په کندهارکې د علماءکرامو یوې لویې اجتماع اسلامي امارت په افغانستان کې رسمي او قانوني حکومت وګاڼه او ددې خوځښت مؤسس ملامحمد عمرمجاهد ته یې د امیرالمؤمنین لقب ورکړ.

د همدې کال په میزان میاشت کې چې د هیواد پلازمینه او ډیرې نورې سیمې فتحه شوې؛ نو اسلامي امارت د نړۍ والو قوانینو او مقرراتو له مخې هم له خوځښت څخه د یو حکومت او دولت مرحلې ته پورته شو.

په دې ډول په هیواد داسلامي امارت سرتاسري واکمني پیل شوه.

دریمه: د اشغال پرضد د جهادمرحله:

په دې ډول د امریکا په مشرې نړۍ وال طاغوت د ناټو اتحاد او د نړۍ په لر اوبر کې د ګڼو نورو اسلامي حکومتونو په ملتیا او د منطقوي غدارانو په همکارۍ په افغانستان پوځي برید وکړ.

د ۱۳۸۰لمریز کال د میزان په ۱۵مه په افغانستان د امریکا د یرغل سره دتاریخ یوه ډیره عجیبه اونامتوازینه جګړه پیل شوه،

یوې خوا ته د اسلامي امارت تر مشرې لاندې محدود شمیر افغان اولس چې ۲۵کلنو جګړو ځپلی او شوروي یرغل یې ټول مادي امکانات تباه کړي و.

بل اړخ ته د امریکا او ناټو په شمول د نړۍ ټول پرمختللي کفري ځواکونه چې پوځیان یې په وروستې ماډرن سپکو اودرنو وسلو تجهیزاتو او په ډول ډول پرمخ تللو جنګي ابزارو سنبال و.

خوشاید الله تعالي ﷻ به یوځل بیا انسانانو ته د خپل قدرت نښې او داسلام دریښتینو زامنو دذعزم او ایمان ګراف ورښود چې دغسې یوه نامتوازینه جګړه رامنځته شوه.

د امریکا پرخلاف د اسلامي امارت د تیر اتلس کلن جهاد په جریان کې چې د افغانستان په خاوره کومه معرکه تیره شوه

هغه د انساني عقل او بشري محاسبې په قالب کې د ځایدو نه ده".

یاد بې ساری اثر د نورو نامتو او تکړه لیکوالانو لیکنې هم لري، خو د لیکنې طبیعت او مزاج ته په پام مو و نشوی کولی په ټولو لیکنو تبصره وکړو، د کومو لیکوالانو لیکنې چې بې تبصرې پاتې دي، له هغوی څخه په ډېره بښنه خپله لیکنه پای ته رسوم.

ومن الله توفیق

# د دیموګراسۍ نیمګړتیا

#ژباړه: حامد افغان

د جمهوریت او دیموکراسۍ غټه نیګړتیا او زموږ له دیني اصولو سره یې ټکر دادی چې هلته قوانین د خلکو د اکثریت په خوښه جوړیږي، خو زموږ دین یو داسې بشپړ نظام لري چې هیڅ کمی ور کې نشته. ځکه خو دخلکو رایه او خوښه یوازې په مباحو چارو کې د اعتبار وړ ده، هغه هم دهوښیارانو، پوهانو ، نیکانو او ځیرکو اشخاصو داکثریت خوښه، نه د زورواکو، چلبازو ، ډمانو، فاسقانو، لبرالانو او دیموکراتانو د اکثریت فیصله. دا ځکه چې مطلق اکثریت کې خو غالبا ناپوهان زیات وي، لکه چې قرآن کریم وایي: زیاتره خلک نه پوهیږي ،زیاتره خلک عقل نه کاروي او زیاتره له شعوره کار نه اخلي. ستاسې پام نه و چې د کرزي پرمهال دجرګې غړیو امنیتي تړون په اکثریت سره تایید کړ خو یوه هم دا ونه ویل چې راځئ اول قرآن وګورو. ځکه موږ دمسلمانانو په توګه مسؤلیت لرو چې د خپل ژوند هر ډول چارو کې لومړی خپلې دیني لار ښوونې وګورو ځکه هغه دین چې د څپلیو پښو کولو په اړه احکام او قوانین لري نو دلویو باچایي او سیاسي چارو په هکله خو حتما ډېرې خبرې لري.



## دهیواد له نومیالیو محقق او معاصر عالم شیخ القران والحدیث

# مولوي عزیزاللّٰه مظهري سره د څرک ځانګړې مرکه

- علمای کرام بائید دهر قسم افراط او تفریط څخه ځان وژغوري ، حق وئیل او رسول بغیر دکوم تاثیر څخه خلکو ته وړاندي کړي او نوي نسل دهلاکت له ګردابه وژغوري.
- طالبانو! په کتاب ځان ښه پوه کړي ، داسې استاذ انتخاب کړي چې دی ترینه اخذ کولی شي څومره چې کولی شي عربي شروحات مطالعه کړي، مطالعه باید د اسلافو په شان کتاب کې وکړي نه موبایل او یا کمپیوټر کې دطالبي په دوره کې باید قلم او کتابچه ستاسي ملګري وي نایابه خبرې به لیکي.

**پوښتنه : جناب شیخ صاحب څرک مجله دخپلو نومیالیو شیوخو او استادانو سره دمرکو او پیژندلو په لړ داځل تاسې انتخاب کړي یې ، ترڅو مو درانه لوستونکي او مینه وال دقیمتي ژوند له لوړو ژورو ، علمي تجاربو اونصائحو څخه مستفید وګرځي؟**

نو که مو خوښه وي پیل به یې ستاسي له ځاني تعارف څخه وکړو چې دې فاني دنیا ته مو چیرته ، څه وخت سترګي پرانیستي ، ابتدایي او منځی زدکړې مو چیرته پیل او ترسره کړي او لوړې زدکړي او بالاخره فراغت مو چیرته وشو ؟

ځواب

بسم الله الرحمن الرحیم الحمد لاهله والصلوة علی اهلها

اما بعد! د څرک مجلې د مدیرانو او کارکونکو څخه علی العموم ډیره مننه کوم چې دغه زرینه لړۍ یې پیل کړې تر څو د یوې خوا زمونږ د هیواد موجوده نومیالي علماء کرام هیواد والو ته ور وپیژندل شي او ورسره ددوي یو ثابت تاریخ او ژوندلیک ددوي له خولوڅخه ولیکل شي او هم ددوي قیمتي مشورې واخستل شي تر څو چې موجوده او آینده نسلونه ترینه په کې دخپلې بریا راز معلوم او تعقیب کړي.

او هم علی الخصوص مو شکرګزار یو چې تاسو مونږ هم ددغې زریني لړۍ دنومیالیو علماء کرامو په لیست کې راوستلو د الله العالمین څخه امید دی چې دتاسو د حسن ظن مطابق معامله راسره په دنیا او عقبی کې وکړي او هم ددغې سلسلې د علماء کرامو او اولیاء کرامو په طفیل راته بخښنه وکړي (وما ذلک علی الله بعزیز)

زه مولوي ابو الامین محمد عزیز الله د مولوي صاحب محدجان مرحوم ځوی او دیو ځواکمن سپین روبي او حَکم علي جان لمسی او دقومي مشر ګل احمد کروسی یم.

اصلا د افغانستان د پروان ولایت د غوربند د شینوارو ولسوالۍ د کفشان د درې دحسین دکلي اوسیدونکی اوپه قوم سیدخان خیل شینواري یم، څنګه چې د غوربند ځمکې غرنۍ دي او هم عموما خلک یې دغربت ښکار دي نو زمونږ والد صاحب د روسانو د انقلاب نه مخکې دبغلان ولایت په پلخمري ولسوالۍ دهنه غوري باغ شمال کې ځمکه واخستله او هم دلته استوګن شو او هم یې دغوربند ځمکه ساتله او حاصلات به یې دلته راوړل چې په دې دروان کې زما تولد هم په (۱۳۵۴هـ ش) کال د ثور دمیاشتې په (۲۰) نېټه په بغلان ولایت د پلخمري ولسوالۍ دباغ شمال په سیمه کې د اربابانو په کلي کې وشو.

د شرائطو د خرابیدو له وجې په (۱۳۵۹هـ ش) دبغلان نه بیرته پروان غوربند ته ستانه شو د هیواد د نامساعده حالاتو په تناظر کې دهجرت په سلسله کې په غوربند کې د یوکال تیرولو نه وروسته

پاکستان ته مهاجر شولو چې تر اوسه په دیار هجرت کې شپې او ورځې راباندې تیریږي.

قاعده بغدادي، قران کریم ناظره او پنج کتاب او خلاصه کیداني مې دخپل والد محترم حضرت مولانا محمدجان نور الله مرقده الشریف او دخپل کلي خطیب او امام مولانا محمد یوسف څخه لوستلي.

ابتداءً خط او کتابت هم راته خپل والد ماجد ښودلی جزاه الله عنا احسن الجزاء

هجرت مو اولا هري پور اول نمبر کیمپ ته وکړاو ددې ځای نه بیا غازي اول کمپ ته نقل شولو کله چې مهاجر ځای په ځای شول او ابتداءا ورته د مکتبونو دجوړولو سهولت برابر شو ابتدائي ښوونځي زمونږ کمپ کې تر دریم صنف پورې وو،کله چې هیئت ممتحنه زمونږ دکلي جومات کې د کلي دماشومانو څخه امتحان اخیست او د ماشومانو د استعداد مطابق یې په صنفونو کې کینول نو زه یې د امتحان اخستو څخه وروسته دریم صنف کې کښینولم او زما والد صاحب ته یې وویل چې ددې هلک استعداد خو لوړ دی مګر متأسفانه چې دریم صنف نه لوړ صنفونه نلرو،دریم او څلورم مو غازي کمپ کې ولوستل بیا دځه مشکل په اساس د غازي د کمپ څخه زمونږ کور بیرته هری پور نوي کمپ نمبر (۱۵) ته راغی، دځای په ځای کیدلو څخه وروسته مې مشر ورو اسد الله خان دهري پور شلم نمبر کمپ کې د کمشنری لخوا جوړ کړل شوي مکتب ته چې سرمعلم صاحب نور الله یې سرپرستي کوله وروستلم او ما غوښتل په پنځم صنف کې درس ووایم ، مدیر صاحب رانه تحریري امتحان واخسیت او دبریالتوب په صورت کې په پنځم صنف کې شامل کړم او تر نهم صنف پورې مې همدغه مکتب ولوست چې ترنهم دصنف اول نمبره پاتې شوم ، څنګه چې دغه مکتب د نهم نه پورته صنفونه نلرل دلیسې ددورې لپاره کهلابټ کالونی اتمان چوک کې دحزب اسلامي افغانستان د النصر عالي لیسې کې شامل شوم او تر دولسم صنف پورې اول نمبر پاتې شوم بلکه د ټولې لیسې عمومي اول نمبر وم، کله چې دمجاهدینو دحکومت دور راغی او صبغت الله مجددي رئیس جمهور شو زه په دولسم صنف کې وم ، په دغه دوره د

مکتب د ویلو مو د ماسپښین دلمانځه نه وروسته د یني کتابونه لوستل ، خصوصا هري پور کې د شیخ القران والحدیث مولانا محمد اسماعیل نور الله مرقده الشریف څخه چې دهري پور، غازي، مانسهره او شینکاری د علماء کرامو رئیس هم وو او خپل جومات کې یې مدرسه جوړه کړې وه.

نو پس د ماسپښین څخه تر مازدیګر ، بلکه ترمابښامه به د دوي مدرسه کې وم او دمکتب سره سره مې دیني کتابونه لوستل ، لکه ګلستان ، بوستان ، شرح وقایه ، نور الایضاح، شرح الیاس، مستخلص الحقائق، دقران کریم ترجمه ، صرف بهائي ، میزان الصرف ، زرادي ، مراح الارواح، نحومیر او همدارنګه څنګه چې شیخ صاحب کلک مذهبي عالم ؤ او دفرق باطله سره کلک مخالف وو چې په کمپونو کې یې دوابیانومدرسې نه پرېښودلی نو وخت په وخت مو ترینه د اختلافي مسائلو بحث اوریدلو او دلائل به یې راته لیکل لهذا دغه شوق او هم د فرق باطله نه نفرت موهم په زړه او دماغ کې ثابت وو او ثابت دی.

دمکتب د فراغت نه وروسته د خپل والد په هڅو او دشیخ صاحب په لارښوونو او دا چې زما خپل شوق په اکمله درجه دیني علومو سره وو نو دکوره د علم دین د زده کړې په خاطر مسافر شوم ، اولا اوګی ته دهماغه ځای نه وروسته پیښور کې یو کال باړه هاشمیه کې اوبل کال پیښور خیبر بازار قاسمیه کې او بل کال کوهاټ دارالعلوم انجمن تعلیم القران پراچه ټاون اوبل کال دار العلوم مظهر العلوم ډاګی صوابی کې.

یو کال مې اوګی کې تیر کړی چې په دغه ځای کې مې ابتدائي کتابونه تر کافیه د سره وویل کافیه مې هم ولوستله بل کال هاشمیه کې سلم العلوم دمولوي سید محسن تره خیل سره شرح جامي معرب اومولوي یعقوب دمولوی سید یعقوب مرحوم سره ، شرح عقائد او مشکوة شریف ج۱ دشیخ القران والحدیث نور محمد ثاقب دامت برکاتهم العالیة سره ولوستل.

د تعلیمي کال د ختمیدلو سره هري پور ته واپس شوم او پاتې کال مې دشیخ القران والحدیث مولانا محمد اسماعیل صاحب سره تیر کړو پاتې کتابونه ، میراث او حساب مې هم ولوستل، بل کال

مې دتکمیل دورې لپاره پېښور خیبر بازار قاسمیه مدرسې ته لاړم ، قاضي ، حمد الله ، امورعامه، صدری، خیالي مې دمولانا سعد الحق صاحب سره او مسلم الثبوت مې دحضرت مولانا مفتي محمدسليم حقاني صاحب سره ولوستل او دکال په اخر کې بیا تکمیل دمولانا غلام محبوب سوات مولوي صاحب سره طورو درالعلوم کې وکړه او شافیه مې دمولانا غلام سرور صاحب څخه یو څه ولوستله، بل کال مې وړه د وره کوهاټ کې پراچه تاون دارالعلوم انجمن تعلیم القران کې ولوستله تفسیربیضاوی دشیخ صاحب عبدالمنان نه اوهدایة بیوع اومشکوة ج۱ دمفتی صاحب سیف الله نه اوهدایه شفعة اوجلالین ج۱ دشیخ صاحب شیربهادرنه اوجلالین ج۲ اومشکوة ج۲ دمفتی صاحب جانان نه او شافیه قبل الوقت دشیخ صاحب نصیب خان نه او د همدې کال په رمضان شریف کې مې ترجمه او دمیراثو دوره د شیخ القران والحدیث مولانا صالح محمد صاحب سره پېښور کې وکړه ، بالاخره دلوی دورې لپاره مې د استخارې نه وروسته داخله په مرکز اهل السنة والجماعةدار العلوم عربیه مظهر العلو م ډاګی کې دشیخ القران والحدیث حضرت مولانا حمد الله جان صاحب سره وکړله او فراغت مې په (۱۴۱۹)هـ ق چې مطابق (۱۹۹۸)م سره کیږي د دارالعلوم عربیه مظهر العلوم ډاګی صوابی څخه وشو.

**پوښتنه: عزتمنده : تشویق او باعث مو څوک وو چې دیني علومو ترلاسه کولو ته مو مخه کړه او ایاد دطالبي په دوره کې مو دا فکر او امید وو چې یووخت به داسې یو جید او نومیالی عالم او مدرس درنه الله پاک جوړوي ؟**

جواب:

دشیخ القران والحدیث حضرت مولانا حمد الله جان صاحب سره وکړله او فراغت مې په (۱۴۱۹)هـ ق چې مطابق (۱۹۹۸)م سره کیږي د دارالعلوم عربیه مظهر العلوم ډاګی صوابی څخه وشو.

دفراغت نه وروسته می په همدغه کال دحضرت شیخ صاحب سره ښه په امعان سره دوره تفسیروکړله اوحضرت شیخ صاحب راته وویل چی ته به مظهرالعلوم کی تدریس کوی ماهم ومنله غالبا نهم دشوال وو داسباقودنقشی دجوړولوپه خاطرحضرت شیخ صاحب مظهرالعلوم ته وغوختلو دنقشی دجوړولوپه وخت طبعادکتابونودتقسیم په سرداستادانوترمنځ تاوتریخوالی وی مګرځه خاموش ناست ووم حضرت شیخ صاحب ماته وکتل اوویی ویل ته کوم کتابونه اخلی ماورته وویل ددی استاذانونه چی کوم کتابونه پاتی شول هاغه به ځه واخلم شیخ صاحب مسکی شواوخه خوشحاله شو.

په اول کال ماته دغه کتابونه راکړل شول سراجی قبل الوقت چی ددوره حدیث طالبان به هم ورته کیناستل شرح جامی معرب. سلم العلوم میرزاهد شرح عقاید مراح الارواح نورالانواراوحسامی اوبعدالوقت به می هم جومات کی باقاعده درس کولو .

دری کاله می مظهرالعلوم کی تدریس وکړو بیاد دځینو مشکلاتو اودوالدصاحب دمریضی په خاطر هری پورته مکمل راغلم اوپه ۲۰۰۱ میلادی کال می هری پورکیمپ نمبر۱۶ کی دجامعه انوارمظهرالعلوم ادام الله جریها وسقیها بنیادکیښود چی تراوسه الحمدلله په زرګونو طالبانو ورنه خپله علمی تنده ماته کړی ده اولاهم ددینی علومو په خدمت کی سره دمشکلاتو لګیاده.

په ۲۰۱۲ کی چی شیخ صاحب سخت بیمارشو [هاغه کال ماخپله مدرسه کی هری پور کی وړه دوره درس کوله ] نوشیخ صاحب زه وغوختلم شفاخانی دشیرپاوته اوماته یی وویل لاړشه ځماکتابونه ددوره حدیث شریف مظهرالعلوم کی ووایه هماغه وو چی ماخپل طالبان دوری دوری هم ډاګی مظهرالعلوم ته بوتلل اودماسپښین دلمانځه پوری به می لویه دوره درس کوله اودماسپښین نه وروسته ترماخامه به می خپله وړه دوره درس کوله چی الحمدلله دواړه دوری په یوکال دالله جل جلاله په توفیق پای ته ورسیدلی اودستاربندی ټپولوطالبانو ته حضرت شیخ صاحب پخپله مظهرالعلوم کی وکړله ولله الحمد.

او دهاغه کال نه تراوسه بیاد دوره کبری درس اله العالمین راته نصیب کړو.

پروسړکال دمیلادی کال ۲۰۱۸ ددسمبر میاشت چی د۱۴۴۰ هجری قمری د ربیع الثانی دمیاشت سره سمون خوری حضرت شیخ صاحب بیاسخت مریض شو په داسی حال کی چی ماهم خپله مدرسه انوارمظهرالعلوم هری پور کی لویه دوره درس کوله

کله چی دشیخ صاحب دمریضی اوپیښورکی دکویټیانو شفاخانه کی دبسترکیدلونه خبرشوم فورا یی خدمت ته حاضرشوم اوخپل سبقونه می دسه وخت له پاره رخصت کړل.

دشیخ صاحب خدمت کی تقریبا پنځلس ورځی پاتی شوم په همدغه حالت کی دشیخ صاحب په امراود کورنی په مشوره مظهرالعلوم ته دشیخ صاحب ددرسونو دتکمیل دپاره لاړم مقدره داوه چی په اول دجنوری ۲۰۱۹میلادی باندی می دشیخ صاحب سبقونه مظهرالعلوم کی دشیخ صاحب په مسند باندی شروع کړل اوپه ۱۲دجنوری ۲۰۱۹دیکشنبی په مابنام عینا د غروب الشمس په وخت حضرت شیخ صاحب خپل روح خالق حقیقی ته وسپاره رحمه الله تعالی رحمة واسعة ونورالله مرقده الشریف.

او د فاتحی د مراسمونه وروسته مودحضرت شیخ سبقونه په داسی حال کی چی دخپلی دوری طالبان می هم مظهرالعلوم ته راوستل پایه تکمیل ته ورسول او ټولو ته مو درجب په ۱٦ تاریخ مظهرالعلوم کی دیکشنبی په ورځ دستاربندی وکړه.

او سږکال یی هم دکورنی داصرارپه اساس دشیخ صاحب په مبارک مسند په مظهرالعلوم کی لویه دوره درس کوم ادام الله جریهاوسقیها ونسئل الله تبارک وتعالی ان یتقبل منابقبول حسن

**پوښتنه : دعلم اونورانیت دنګ منار فضیلت مآب حضرت شیخ صاحب مولنا حمدالله جان داجوی نورالله مرقده له تاسو سره ډیر اخلاص اوشفقت درلود تردې چې تاسو دهغه په ژوند چې کله هغه ناروغ شو له تاسو یې وغوښتل چې دهغه په علمي مسند کیني او دوره یې طالبانوته تکمیل کړی ، همداسې چې هغه کله وفات شوهم تاسې دهغه درس اودوره سرته ورسوله ، ددغه دومره لوی اعتماد اوباور راز او علت په څه کې وو ؟**

جواب:

د شیخ صاحب مبارک د دومره زیات اخلاص او خواخوږی په رمز نور زه هم نه پوهیږم ، خــــو زما خپل برداشت داسې دی چې د کوم وخت نه ما د شیخ صاحب محترم شاګردي شروع کړې ده ، په کمالِ عقیدت او په احترام مې ورسره شروع کړې ده .هغوي نه مې چې کومه مسئله اوریدلې پر هغې مې اعتماد کړی دی .

او پرته د تردد او شک نه مې دا منلې ده چې بلکل دا مسئله رښتیا ده .

د شیخ صاحب مبارک د مسئلې په مقابل کې مې خپلې مطالعې او خپلو پلټنو ته هیڅ اعتبار نه دی ورکړی .

او همدا رنګه چې شیخ صاحب مبارک کله هم یو خبره کړې نو د هغوي د رعب له وجې ما ترې تپوس هم نه دی کړی چې دا مسئله کوم ځائ کې شته یا نشته ؛ خو بیا مې لس کاله وروسته هغه مسئله پخپله په کتاب کې پیدا کړې ده .

او اوس هم زه دغه ګنمه چې د هغه خبرې د هغه تعلیمات معیار حق دي .

او لازمه ده چې مونږ په هغې باندې عمل وکړو او دا د ځان لپاره مشعلِ راه وګرځوو .

ما چې به هر کله درس او تدریس یا هم نور کارونه کول نو له حضرت شیخ صاحب سره به مې مشوره کوله .

یو وخت ما دورۀ تکمیل تدریسوله نو د شیخ صاحب څنګ ته د مشورې لپاره ورغلم ، شیخ صاحب خپل قلمي کتابونه ماته راکړل او راته وویل چې دا ورته ووایه ....

بیا مې وړه او لویه دوره دواړه د شیخ صاحب په امر طالبانو ته تدریس کړه .

الله تبارک و تعالی دې د شیخ صاحب ارواح د جنتونو په مانیو کې هوسا کړي ، دا چې نن مونږ دلته ناست یو او خلکو ته دیني زده کړې ورښایو دا د همدې شیخ صاحب برکت او دعاګانې دي ...

**پوښتنه: د طالبی په دوره کې موانع هم کله درته مخې ته راغلي چې د زده کړو بهیر مو یاټکنی او ځنډیلی وي که څه مثالونه ممکن وي راته وی وایې ؟**

جواب:

هو ډیر موانع خصوصا فقر او غربت مګرپه صبر او ستقامت سره اله العالمین خپل منزل ته ورسولم، خصوصا یو وخت ډیر سخت او ځورنکی راباندې راغی چې بیان یې مناسب نه بولم حل یې داسې وشو چې الله تعالی دخپل ګران حبیب حضرت محمد صلی الله علیه وسلم زیارت راته خوب کې نصیب کړو او د ډیرو

خبرو او صحبت نه وروسته یې راته وفرمایل(عزیز الله لاره مې درته خلاصه کړې ده زه او جنګ کوه) کله چې بیدارشوم ډیر خوشحاله شوم او خوب مې حضرت شیخ صاحب ته ووایه هغه راته ویل علم مه پریږده مشکلات به راځي مګر دوام به نلري خپل استقامت دلاسه مه ورکوه.

**پوښتنه : قدرمنه که ممکنه وي او مناسبه یې بولی دطالبي په دوره مو په خپل تقسیم الاوقات لګ ربا راته واچوی چې کله مو کتابونه لوړ او سخت شول ، مطالعه مو څو ساعته کوله ، خوب مو څومره وه او له ملګرو سره تفریح او مجلس ته مو څومره وخت ورکړی وو ؟**

جواب:

لکه څنګه چې مومخکې ولوستل ما د طالبۍ په دور کې مهمل وخت ندی تیر کړی په مدرسه کې ددرس په دوران کې د مدرسې دتقسیم اوقات پابند ووم دخوب په وخت کې مثلا غرمه کې دقیلولې خوب او ددرس په وقت کې پابند درس حتی کوم وختونه چې دمدرسې لخوا ازاد حسابیدل لکه د مازدیګر وخت او دسهار وخت تر شروع کیدلو د درسونو هم ما ضائع ندي تیر کړی بلکه د سهار وخت کې لیکنه او یا تدریس او مازدیګر کې دملګرو سره تکرار او یا دڅو سورتونو حفظ دجمعې مبارکه شپه صلوة تسبیح او یابل داسې کوم عمل چې مو اوریدل دا عمل سره د نبي کریم صلی الله علیه وسلم دیدار نصیب کیږي او دجمعې په ورځ به مو دعامو طالبانو په شان خپل ضروري کارونه سر ته رسول.

**پوښتنه: جناب! که دخپلو څو تنو هغو استادانو نومونه راته واخلی چې پوهیږی علمي فیض او برکت مو زیات ورڅخه اخیستی دی او دهغو خلوص او لورینو مو اوس هم په زړه کې نقش وي ؟**

جواب:

تقریبا زما استاذ الکل شیخ القرآن والحدیث مولانا محمد اسماعیل کندوزی رحمه الله دی او دتکمیل مې دمولانا سعدالحق او مولانا غلام محبوب سره کړی دی ، وړه دوره می دشیخ القران والحدیث مولانا عبدالمنان څخه کوهاټ کې اولیه دوره او دوره تفسیر مې دشیخ الکل فی الکل حضرت مولانا حمد الله جان المظاهري القادري الداجوي نور الله مرقده الشریف څخه او فراغت مو د دارالعلوم عربیه ډاګۍ صوابی څخه.

**پوښتنه: جناب ! که دخپلو څو تنو هغو استادانو نومونه راته واخلی چې پوهیږی علمي فیض او برکت مو زیات ورڅخه اخیستی دی او دهغو خلوص او لورینو مو اوس هم په زړه کې نقش وي ؟**

جواب:

زما ټول استاذان زماپه ترقي کی مهم رول لري او هیڅکله یې زما په تربیه او اصلاح کې کمی ندی کړی او ټول الحمدلله د خپل وخت جید علماء کرام او اولیاء الله دي، خو زیاته ونډه اوعلمي فیض راته دخپل والد ماجد څخه او دشیخ القران والحدیث مولانا محمد اسماعیل کندوزي څخه او نهائي تربیه او اصلاح او خصوصي اثر دشیخ القران والحدیث حضرت مولانا حمد الله جان داجوي رحمه الله څخه راته رسیدلی او د هغوي د تربیت خاص اثر اوس هم راباندې پروت دی، والحمدلله علی ذلک.

**پوښتنه : که ممکنه وي او په یاد مو پاته وي ، داهم راته ووایې چې تکمیله درجه ، وړې او لویې دوري کې مو هغه همدرسي ملګري څوک وو چې تاسې فکر کاوه په کتابونو ښه پوهیدل او له ورایه پکې دښو او جیدونو مدرسونو نښې نښاني پکې څرګندیدلي ؟**

جواب:

د تکمیل په درجه کښی زمونږ په ملګرو کې د استعداد ملګري چې ډیر امید مو ورته درلود او بیا هماغسې وشول عبدالحی نومیدلو چې اوس الحمد لله شیخ الحدیث دی کابل کې او ښه کامیابه درسګاره لري او طورو دار العلوم مردان کې بیا ډیر ملګري د استعداد خاوندان موجود ؤ لکه شیخ القران والحدیث محمد نعیم حضرت مولانا عبدالستار مرحوم حضرت مولانا حبیب الله پرواني او داسې نور.

وړه دوره کښی مولوی صاحب شکرالله دخوست اولویه دوره کښی مولوی صاحب محمدقاسم ترکمن چی زه دبخاری اودی دابوداوودشریف قاری وو.

**پوښتنه : دقدر وړ شیخ صاحب : تدریس مو له کوم ځایه او کتابه پیل کړ او که داراته ووایي چې ددومره کامیاب تدرس راز مو په څه کې وو مطالعه ، داستادانو دعاګاني که بل څه ؟**

جواب:

کله چې د مظهر العلوم څخه د فراغت مراسم تر سره شول په همدغه کال مې دشيخ صاحب سره دوره تفسير هم وکړه حضرت شيخ صاحب راته ويل چې ماسره به مظهر العلوم کې تدريس کوې ماهم ومنل ، کله چې کتابونه تقسيمدل حضرت شيخ صاحب زه هم راغوښتلم غالبا دشوال نهم تاريخ وو طبعا دنقشه اسباق دجوړلو په وخت داستاذانو تر منځ تاو تريخوالی موجود وي څوک يو کتاب غواړي او څوک بل او څه غلي ناست ووم حضرت شيخ صاحب ماته وويل کوم کتابونه تاته وليکم ماورته وويل دغه مولوي صاحبانو نه چې کوم پاتې شول هماغه ماته وليکه شيخ صاحب وخندل او خوشحاله شو لهذا په اول کال درس کې ماته سراجي قبل الوقت چې ددوره حديث طالبان هم ورته کيناستل او شرح جامي، ميرزاهد، سلم العلوم، نور الانور، حسامي، مراح، اوداسې نوراو بعد الوقت مې په خپل مسجد کې باقاعده درس شروع کړو.

دکامياب تدريس راز زما په آند دوه جوانبه لري:

اول: د مور او پلار داخلاص دعا داستاذانو د زړه له کومې دعا او دا دواړه په خدمت سره حاصليږي او الحمدلله زما څخه زما مور او پلار د مرگ تر وخت خوشحاله وو د زړه له کومي يی ر اته دعا کولې او ما يې خدمت کې بالکل سستي نده کړې او هم مې داستاذانو مکمل لحاظ ساتلی ددوي خدمت کې مې بهانې ندي کړې او چرته مې ورباندې اعتراض يادووي غيبتونه ندي کړې.

دوهم: په کتاب حاکم ووم ښه پوهيدلم او طالب العلم ته مې جوړ درس په خپل طرز ورباندې کولو که چيرې به په يو طرز دده سر خلاص نه شو په بل طرز مې ورته ويلای شوی، ځينې ملگرې مطالعه کې مقلدين وي تعبير هم خپل نه شي کولای دا چې يا فصاحت نلري يا خبره غونډولی نه شي اوياهم حاکم نه وي خپل تعبير نه شي کولی نو بيا طالبان خفه شي او تدريس يې ناکام شي.

او دغه رنگه مسلسل درس مې ورکولو کله غير حاضري او په درس کې عدم تسلسل د درس دناکمې باعث گرځي.

**پوښتنه : دخپلو تجربو او لوړو ژورو په رڼا کې داوس دور طالبانو ته دې نصائيح څه دي چې څنگه له وخت څخه کماحقه استفاده وکړي ؟**

جواب:

د اوس دور طالبانو ته مې نصيحت دادی چې د موبائل او لايعنی شيانو څخه ډډه وکړي بې ځايه مجالس پريږدي.

په کتاب ځان ښه پوه کړي او داسې استاذ انتخاب کړي چې دی ترينه اخذ کولی شي څومره چې کولی شي عربي شروحات مطالعه کړي دغه پښتو وغيره شروحات دده استعداد کمزوری کوي او بيا چې استاذ شي هم سهولت طلب وي او فائده به يې کمه وي دهر څه نه مخکې خط کتابت يعنې ليک لوست ته بايد ډير متوجه شي ددين رسول په دوه طريقو باندې د عالم وجيبه ده ، کتابتا او قرائتا لهذا دغه خامي بايد لرې کړي ، مطالعه بايد د اسلافو په شان کتاب کې وکړي نه موبايل او يا کمپيوتر کښی دطالبې په دوره کې بايد قلم او کتابچه دده ملگری وي نايابه خبرې به ليکي.

**پوښتنه: عزتمند شيخ صاحب ستاسي په اند علمای کرام دتاليف او ترجمې برخې ته بائيد څومره توجه واړوي او ستاسي په فکر زمونږ او تاسي ټولنه کومي برخې ته زيات ضرورت لري چې درانه شيوخ او علمای کرام ورته پام واړوي، خواری وکړي او ترشا مستند او معتمد تاليفات او تصانيف پريږدي ؟**

جواب:

زمونږ مبارک دين په اولني نازل شويو ايتونو کې مونږ ته دغه لارښوونه کړې چې ليک او لوست ډير اهميت لري د (اقرأ) څخه دلوستلو اهميت او د(علم بالقلم) څخه دليک اهميت، لهذا علماء کرام باندې خپله ذمه داري قرائتا او کتابتا سر ته ورسوي مونږ د موجوده نسل د رهنمائي مسؤليت هم لرو او د اينده نسلونو د رهنما يی مسوليت هم لرو موجوده نسل که په درس تدريس او وعظ او تقاريرو اصلاح قبلوي مگر اينده نسلونه به زمونږ کتابونه او ليکنې لولي او رهنمايي به اخلي.

زما په آند زمونږ جامعه ډيره محتاجه ده لهذا کوم يو عالم چې کوم شق کې ښه مهارت ولري او ورسره يې شوق وي يواځې په درس

اکتفاء ونکړي  باید لیک هـم وکـړي تـر څـو اینـده نسـلونه ترینـه ښـه استفاده وکړي ، خصوصا دفقهي شریفې  او داحادیثو په برخـه کـې او هم موجوده اختلافي دور کې په اختلافي مسائلو کې د اعتـدال  لیکـل او دهر قسم افراط او تفـریط څخـه ځـان  ژغـورل او حـق صراح بغیـر دکوم تاثیر څخـه وړانـدې کـول یـوه اهمـه وجیبـه  ده چـې مسـتعد او پیاوړی علـماء کـرام بایـد ورتـه متوجـه  شي او نـوي نسـل  دگـرداب دهلاکـت څخـه وژغـوري او دامـت مسـلمه عمومـا او د افغانـانو  د وحدت  خصوصا هڅې وشي تر څـو پـه  یـوه ډگـر کـې هـم دشـمن ورباندې کامیاب نه شي.

**پوښتنه : دپای پوښتنه مو داده  چې عصري علـوم ، ددینـي علومو په پراختیا ، تشـهیر څـومره رول لـري او دیـوه دینـي طالـب او دیني عالم لپاره چې دعصري پوهي کمال هم له ځان سره ولري څومره پرځای خبره درته بریښي**

جواب:

مقصـودي علـوم خومعلـوم دي چـې همدغـه زمـونږ اوستاسـو دکامیـــابی ذریعـــه او راز دی مگـــر مقصـــودي علوموتـــه درســـیدلو لپاره  دعلوم آلیه لوستل ډیر اړین دي ترڅو په مقصودي علومو بانـدې کامل دسترس حاصل شي ، پخوانیو علماء کرامو اویـا ددرس نظـامي بانیانو دغه ترتیب  هم په همدې  لحاظ بنا دی تر څـو د علـوم آلیـه پـه لوستلو سره علوم مقصوده ښه حاصل شي د اوسني وخـت  د اوضـاع مطابق زما په آند عصري علوم هم تر یوحده پورې مقصودي علومو ته د آلی حیثیت لري  ، لهذا یو کـس چـې غـواړي پـه مقصـودي علومـو باندې ښه پوهـه حاصـله کـړي اود یـو ښـه اسـتعداد خاونـد وي بایـد دعصري علوموڅخه پوره حصه ورسره وي ، خو دا پـدې معنـی  چـې اله به یی بولی او خپل مطمح نظر  به یې علوم مقصوده وي.

او دعصري علومو لرل  اوس وخت کې ددیني علومو دتشهیر او پراختیـا کـې ډیـر رول لوبـولی شي ، زمـا پـه انـد دنیـاوال غـواړی پـه علماءکراموباندی محدودیتونـه وضـع کـړی ترڅومیـدان خـالی پـاتی شیاوسیکولرانو او ازاد خیاله خلکو ته لار  خلاصه شي نـو لهـذا دوي څو شرائط  وضعه کړي که هر کس په دغه شراطیو برابر وو حق د وینا درس او تدریس لری او یا بین المللی  مجالسو کې شرکـت کـولی او خپل نظر څرگنـدولی شي او کـه  نـه وي نـه شي کـولی، علـماء بایـد متوجه وي ، مثلاد وفاق المدارس د داخلي لپاره دمکتب ترلسم لوستل ضروري دي، باید مونږ  په همدې اندازه خپلو پچیانو باندې ښه ولولو ترڅـــو ورتـــه دترقـــی مـــانع پـــاتې نشي_ بیـــا ترتیـــب وار د وفـــاق المدارس  امتحانونه ورکړل شي  دا سلسله باید تعقیب شي ، دفراغـت په وخت کې  باید یواځې د خپلې مدرسـې د شـیخ صـاحب پـه سـند اکتفاء ونه شي بیا دوفاق منل شوی سند طالب العلم د ځان سره ولري او بیـا بایـد تخصصـات وکـړي او  هـم دلیسـانس څخـه وروسـته د ماستري  سند هم ترلاسه کړي ترڅـو ددیـن پـه رسـولو کـې اوبیـانولو کې  محدودیتونه دده مانع ونگرځـي او خـدای مکـړه کـه یـو طالـب ا لعلـم سسـتي وکـړي او موجوده  حـالاتو تـه متوجـه  نشي_ کیـدای شي  داسې شرائط  آینده وضعه شي چې هغه څوک بـه درس ورکـوي چې لیسانس یا ماستري ولري چې تخصـص یـې کـړی وي او داسـې نور  بیا به امکانات نه وي او وخت به ترینه تیر وي ، لهذا  زما په آند د: زمانه باتو نسازد  تو با زمانه بساز ؛ په  بناء علماء کرام اوطالبان  بایـد د وخت حالاتو اوتقاضاؤ ته ډیرمتوجه وي او ژوندی بیلگه یی په معاصر تاریخ کې  زمونږ او تاسو لپاره حضرت مفتي تقي عثماني صاحب دی چې دغه موانع یی لرې کړي او خدمت یې هم عالمگیر دي.

په پای کې  یو ځل بیا دڅرک د مجلې  دمدیرانو  او منسوبینو او مشاورینو  نه د زړه له کومې مننه کوم چـې مـا عـاجز  تهیـی  دا موقـع راکړه تر څو دا څو خبرې خپلو هیوادوالو ته وړاندې کړم  واخر دعوانا ان الحمد لله رب العالمین

وصلی الله  تعالی وسلم علی خیر خلقـه محمـد وآلـه وصـحبه وسلم  اجمعین

کتبه ببنانه وقاله بلسـانه ابـو الامـین محمـد عزیـز اللـه الحنفـي الحسیني المظهري غفرله الباري.

۲۷ شوال ۱۴۴۰ یوم الاحد

(څرک اداره) مننه جناب شیخ صاحب چې خپل قیمتي وخت مو راکړ او زمونږ پوښتنو ته مو په له اخلاص او معلوماتو ډک ځوابونه راکـړل ، الله پاک مو په علم او عمل کې لوی برکتونه او نور فیوضات ولوروه!

***

د بدر الشهداء شهید

# قاري سیدآغا (یعقوب) رحمه الله

## ژوند او کارنامو ته کتنه

لیکوال: صفي الله "رائد"

د اسلامي امارت مشرتابه په هرځای او هر ډګر کې ډېرې سختې ګاللي؛ له مشره تر کشره له رهبره تر عسکره ټولو په دې سپېڅلې لار کې د یو سپېڅلي ارمان لپاره قرباني ورکړي او لاهم ورځ تر بلې په سختو او پېچلو مرحلو کې قرباني ورکوي..

هوکې، دمیدان ښار ویاړمن او اتل شهید قاري صاحب سیدآغا ( یعقوب) تقبله الله هم د همدې سپېڅلي هدف او آرمان لپاره ځان قربان کړ او د دغو سپېڅلیو شهیدانو د لارې لاروی وګرځېد .

شهید حافظ مولوی سیدآغا (یعقوب) د ملارحیم زوی د میدان وردګو ولایت مرکز میدان ښار عثماني خیلو د سیمې د هلال خېلو د کلي اوسېدونکی په۱۳۶۵هجري شمسي- کال کې دې فاني نړۍ ته سترګې غړولې وې .

شهید قاري صاحب سیداغا "یعقوب" تقبله الله د ایمان، تقوی، اخلاص، استغنی، زهد، شجاعت، سخاوت، نصیحت او نیکو اخلاقو نمونه وه.

تل به یې له کونډو، یتیمانو او فقیرانو سره مرسته کوله، له یتیمانو سره له ډېرې مینې په اخترونو کې تر ځان، کورنۍ او ملګرو په هرڅه کې لومړیتوب ورکاوه، کورونو ته به یې ورته او له نېردې به یې دهغوی د حال پوښتنه کوله .

شهید قاري صاحب رحمه الله زړور، ځیرک او یو لوی ولي الله مجاهد انسان و.

شهید قاري صاحب د قران عظیم الشان د حفظ سربېره، تکړه عالم، بلفعل مدرس او د زرګوونو مجاهدینو او طالبالعلمانو مشفق استاد او مربي و.

شهید قاري صاحب یعقوب تقبله الله زړه سواندی، او ملنګ انسان و له مال او دولت سره یې هېڅ کومه علاقه نه درلوده؛ د ملنګۍ لویه نښه یې دا وه چې ده به په جیب کې هېڅ وخت روپۍ نه ساتلې؛ چابه چې پیسې ورکړې سمدستي به یې بل ملګري ته ورکولې.

**د شهید قاري صاحب علمي سویه او خدمتونه:**

خپلې ابتدایي زدکړې یې له خپل پلار ملا عبدالرحیم څخه ترسره کړې او بیا د قران عظیم الشان د حفظ لپاره پاکستان ته ولاړ او دمولوی خالص کمپ په یوه مشهوره مدرسه کې له مشهور استاذ قاري صاحب وفي الله څخه د قران کریم حفظ ترسره کړ د فراغت نه وروسته خپل ټاټوبي میدان ښار ته راغی او په مشهوره مدرسه مدینةالعلوم کې د استاذ په حیث وټاکل شو او تدریس په دوران کې یې ګڼ شمیر شاګردان او حافظان وروزل چې دغه سلسله به ان شاءالله د قیامت تر ورځې روانه وي.

کله چې اسلامي امارت منځ ته راغی د شر او فساد په خلاف جهادي مبارزه پیل شوه نوموړي جهادي فعالیت سره سره په مختلفو مدارسو کې خپله تعلیمي سلسله جارې وساتله چې په دغه جریان کې د ننګرهار مشهوره مدرسه درونټه کې خپلو درسونو ته له جیدو استادانو ادامه ورکړه.

کله چې اسلامي امارت سقوط وکړ نوموړي له خپلو ګنو ملګرو سره پاکستان ته هجرت وکړ، دهجرت په دوران کې یې خپلو نیمګړو درسونو ته مخه کړه او له مشهورو علماءکرامو څخه یې په مختلفو مدارسو کې لکه: زبیریه، غوثیه، محمدیه،

نعمانیه، دارالقراء نمک منډیي او داسې نورو مدارسو کې خپلې زدکړې جاري وساتلې چې بلاخره د فضیلت پګړۍ له مشهور استاد شهید شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا حسن جان مدني رحمه الله څخه په امداد العلوم مدرسه کې په ۱۳۸۷ کال کې وتړله او دا لوی شرف یې حاصل کړ، په دې سربېره شهید قاري صاحب سیدآغا له عربي ژبې سره بې کچې مینه درلوده له همدې کبله یې په معهد امام ابوحنیفه کې داخله وکړه او د کُلیې ترکچې پورې ورسولې، کله چې له کلیې نه فارغ شو نو د پېښور ښار په دارالعلوم تاج اباد کې د استاد په حیث مقرر شو چې په نوموړې مدرسه کې یې په اسلامي عقیده او جهادي فکر او نظر ګڼ شمېر شاګردان وروزل او د جهاد ډګر ته یې ورډاندې کړل.

د شهید قاري صاحب رحمه الله جهادي سویه او خدمتونه:

شهید قاري صاحب سیدآغا دخپلو درسونو په لړ کې کله چې د اسلامي امارت اغاز وشو او دشر او فساد په خلاف عملي جهادي مبارزه پیل شوه د کندهار له سپین بولدک څخه د دې سپېڅلي کاروان ملګری و او په مختلفو ولایتونو لکه کندهار، زابل، ارزګان، غزني، میدان وردګ، لوګر، کابل، تخار، او قندوز کې خپل جهادي فعالیت مخته وړی چې په تخار کې د مشهور جهادي مشر شهید قاري صاحب فیاض له نېږدې ملګرو څخه وو.

کله چې امارت اسلامي سقوط وکړ نوموړي له خپلو ملګرو سره پاکستان ته هجرت وکړ له تعلیمي سلسلې سربېره یې د صلیبیانو پر خلاف په خپل ټاټوبي میدان ښار کې جهادې مبارزه پیل کړه؛ نوموړی د جهاد او مجاهدینو له بنیاد ګذارانو څخه و چې په دې لړۍ کې یې ګڼ شمېر مجاهدین تربیه او دجهاد ډګر ته ورډاندې کړل.

شهید قاري صاحب د اسلامي امارت د مشرتابت لخوا د میدان ښار ولایت سربېره مرکز کابل کې د هدفي وژنو مسئول وټاکل شو چې د نوموړي تر قیادت لاندې ګڼ شمېر کامیاب عملیات ترسره شول.

شهید قاري صاحب محاذ مشر او دمرکز میدان ښار دنظامي مسئول په حیث دنده ترسره کړې، د جهادې فعالیت په دوران کې صلیبیانو او ګوډاګیانو ته درانه ګذارونه ورکړل چې امریکا او د کابل غلامي اداري ته مطلوب شو او د نوموړي پرسر یې څو ځله نقدي جایزې او انعامونه وټاکل، چې د هر کال په دوران کې به امریکایانو او متحدینو یې په نوموړي پسې هوایي او ځمکنې عملیات ترسره کول چې ددرنو تلفاتو په لیدو سره به له ماتې سره مخامخ کېدل .

هوکې، د اسلام په لار کې د شهید قاري صاحب نه ستړي کېدونکي خدمتونه پرلپسې دلیکلو دي؛ هغه د یو سپېڅلي اسلامي نظام لپاره پدې لاره کې بې شماره قرباني ورکړې.

د شهید قاري صاحب د کورنۍ یو ستر اعزاز دادی چې د دوی په ورونو کې له سپېڅلي شهادت پرته په بل مرګ څوک مړه شوي ندي؛ (د دوی مشر ورور شهید فضل رحیم، دویم ورور یې د میدان ښار د غرونو اتل شهید ملا سید رحیم او زوی یې شهید قاري محمد آغا، شهید الحاج عبدرازق، شهید قاري ګل آغا او شهید قاري صاحب سیدآغا "یعقوب" تقبله الله) .

د قاري صاحب سیداغا "یعقوب" تقبله الله دا ټول یوسف مخي ورونه یو یو پرلپسې د ده پر ژوند په شهادت ورسېدل،

هو! لکه یعقوب ورپسې وکړېد، وزورېد خو! داچې هرڅه یې د خپل رب لپاره و، نو ځکه ده هم د یعقوب علیه السلام په څېر په خپل ټینګ او متین عزم خپل خالق ته تللې لاره ټینګه ونیوله او خپله برحقه مبارزه یې پر مخ وبوړه؛ له ځوانۍ تر شهادته په همدې ستړې او اغزنه لاره کې ستړي مزلونه وګالل،

تر دې چې په دې لاره کې یې د میدان ښار مرکز ته څېرمه د شهاب الدین په سیمه کې د ۱۳۹۸ کال دسرطان دمیاشتې په لسمه نېټه د ماښام ۸ بجې د صلیبیانو په بې رحمانه هوایي برید کې له خپلو اتو ملګرو سره خپل لوړ ارمان شهادت ته غاړه ورکړه.

نحسبه کذالک والله حیسبه.

کورنۍ او ملګرو ته یې د دې ستر ویاړمن شهادت مبارکي وایم او باوري یم چې ملګري به یې کله هم دده تقبله الله میرانه او کلک هوډ له یاده ونه باسي، بلکه په همدې ستړې للار به یون کوي او دا روانه کړې بیړۍ به تر ساحله رسوي ان شاءالله.

# نو په دغو رسنيو طالبان ملامت دي؟!!

اسير همت

سندره ختمه شوه، اذان شروع شو، بعد له اذان نه تجارتي اعلان وو، يوه لوڅ سرې ډمه د يو ماركېټ د جامو ستاينه كوي، يو ځل يو رنګ او بيا بل رنګ جامې واغوندي، داسي جامې چې له افغاني ټولنې سره په هيڅ وجه نه ښايي .

بل اعلان! د نشه يي توكو كرل او اخيستل د اسلام په مقدس دين كې حرام دي د فلانكي جمات مولوي صاحب وايې د شريعت له نظره د نشهٔ يي توكو كرل همدا رنګه اخستل او خرڅول يې حرام دی او... دا اعلان ختم بل اعلان شروع شو،

تروروستانو نه ښښونكى جنايت تر سره كړ، په فلاني جمات كې يې پر لمونځ كونكو مسلمانانو ځاى پر ځاى شوى ماين والوزاوى، طالبان تروروستان دي، تاسو د افغان ملي اردو ملي پوليسو او محلي پوليسو ملاتړ وكړئ، په اخر كې (څه مو چې وليدل يو سوداګريز اعلان وو)

خبرونه شروع شول، په پوډرو لړلې نجلۍ راڅرګنده شوه، ستاسو پام ددې ساعت خبرونو ته راګرځوم، ويانده (؟؟؟) د هلمند په ولايت كې افغان سرتيرو په جګړه كې پرمختګ كړی ده، ډېرى سيمې يې بيرته له دهشت افګنانو نه نيولې دي د دفاع وزارت وياند خبريالانو ته وويل: زموږ اردو هلته په لوړ مرال جنګېږي، هلته د طالبانو په لسګونه جسدونه د جګړې په ډګر كې پاته دي، موږ هيڅ تلفات نلرو، هغه د طالبانو خپره شوې ويډيو چې ګواكې لسګونه اردو يې نيولې ده د تبليغاتي جګړې يوه برخه وبلله او له حقيقت نه لرې يې وبلله.

نو اوس به ددغو مزدور او مفسدو رسنيو په مقابل كې چې طالبان كوم اقدام او غبرګون ښيي هغوئ ب ملامت وی؟ نــه هيڅكله نه دطالبانو حق جوړيږي له دغه مزدوري او حلقه بګوشي رسنۍ ووهي وې ځپي او افغان ولس يې له شر او فريبونو څخه خلاص كړي

**له خپلو سيالانو څخه لږ شرم وكړئ!**

كاش چې تاسو د كركټ د بايللو غوندي غم د خپلي خاوري پر اشغاليدو ژړولی وای.

كاش چې تاسو د كركټ د لوبي د بايللو غوندي اوښكي د اشغالګرو لخوا د دغه مظلوم ملت د مظلومو وګړو پر مظلومانه شهادت بهولی وای.

كاش چې تاسو د كركټ د ګټلو غوندي توجه د خپلي خاوري د ساتلو او د خپل ملك د سرحداتو د حفاظت په باره كی كړی وای.

كاش چې تاسو د كركټرانو د كركټ د لوبي په بايللو كي د غلطيو د راپورته كولو توجه د دغه ملك د ليډرشيپ په هغه غلطيو كي كړی وای چې په وجه يې دوی د دغه خاوري او ملت استقلاليت او خپلواكي بايللی ده

د ازادۍ تعريف نه دی بدل سوی، ازادي اوس هم هغه پخواني تعريف لري، ټول ملتونه د خپلي خاوري، كلتور، عنعناتو او ملت و ساتني ته لومړی توجه وركوي، دوی لومړی خپلي پيسې او انرژي د همدغه هدف ساتلو كی مصرفوي، كله چې له دغه اړخه بيغمه سي، وروسته سرمايه د ملت پر اقتصادي پروژو لګوي، كه بيا هم څه پيسې زياتي سوی، هغه پر سپورټ او داسي نورو درېمه درجه مواردو كي كاروي.

دا تاسو كوم لوری روان ياست؟

د شلو كالو څخه مو خاوره د اشغالګرو لخوا د تاريخ د اوږدې جګړې شاهده ده، مشر، كشر، نارينه، ښځينه، سپين روبي، ځوانان او ماشومان مو له يوه مخې په وحشت سره قتل عام كيږي، د ملت يو ښار يا اقلا يو كلی هم د يوې ورځی لپاره خوندي نه دی، د ملت ټولنيز اقتصادي حالت مو تر صفر په

کښته درجه کې دی، مریضان مو د پاکستان او هندوستان د کوسلگریو په قطار کې خپل سترې ارواحونه خپل خالق ته سپاري، خو تاسو پر دغه ټولو ناخوالو او ستړیاوو داسې سترګي پټې کړی، لکه دغه ټولي کیسې چې په کوم بل ملک کی رواني، تاسو کرکټرانو ته په لکونو ډالر ورکوی، خو د دغه خوار ملت مجاهدینو، مریضانو او اړو کسانو ته څو زره افغانۍ نه سی ورکولای، تاسو د کرکټ لوبې پر بایللو اوښکې تویوې، خو د ملت د استقلال او خاوري بایلل په خاطر کې هم نه درګرځوی.

زه تاسو ته نه وایم چې د کرکټ شوق مه کوی!

زه صرف دومره درته وایم چې که ځان د نړۍ سیالان کوی، نو لومړی خپله خاوره او د خپل ملت استقلالیت وګټې، وروسته خپل شته وسائل د خپل ملت په اقتصادي پرمختګ کی وکاروی، که بیا هم ستاسو په سینو کې حوصله او جیب کې پیسه پاته وه، نو سپورټ او کرکټ ته هم په خپل وخت او درجه کې د نوري نړۍ غوندي توجه وکړی.

بیا که جنګ پر کوی، که پر ژاړی او که هره ټکه پکې اچوی، نړیوالو ته به مو د شرم د لاسه پوزه نه وي پرې، اوس د کرکټ په هکله ستاسو دبې ځآیه غورځو پرځو له وجه ټوله ملت د نړیوالو د خندا ګرځیدلی او ټوله نړۍ حیرانه ده چې ملت یې پر څه حال دی او دوی پر څه شي ژړا او اوښکې تویوي؟

# د طالب نظریاتي مخالفین دې ولولي!

م عثمان

طالبانو د اشغال په شروع کې تاسو د یو افغان او مسلمان په حیث د خپل دین او خاوري دفاع ته را وبللاست، خو تاسو طالب ناپوه او د سیاست په باریکیو نا خبره وبلی او د امریکا سره جګړه مو د غره سره سر جنګول وبلل، خو طالب ستاسو د بې همتۍ له وجه همت نه وبایلی، خپلې غوښې، هډونه، بچیان، سرمایه، کور او کلی یې ټول د خپل دین او خاوري څخه د دفاع په خاطر په الهي اخلاص سره د لیلام پر میدان کښېښوول، تاسو د طالب په خلاف د امریکایانو مرسته د ډالرو د ترلاسه کولو په خاطر وکړه، تاسو د څو روپو په خاطر د امریکایانو سره د مرستي په سبب خپله دنیا بدنامه او آخرت خراب کړی، خو د طالب د قربانیو برکت دی چې نن هغه مغروره امریکا د طالب د استقامت له وجه د تروریزم تعریف بدلوي، و طالب ته د ضرورت له وجه یې عالي رتبه مامورین خپل ټایم ټیبل خرابوي، د طالب د اسلامي ځیراکت له وجه پر خپلو زړو پالیسیو د بطلان کرښې را کشوي.

## ګوری وروښو!

تاسو طالب په زیاتو سپکو او بې شرمه نومونو سره یاد کړی، خو په طالب کی دومره ظرفیت سته چې ستاسو پر ماضي سترګي پټي کړی، خو زه ستاسو څخه یو خواست کوم چې د طالب په افغانیت او اسلامیت کی د اشتراک له وجه دومره قرباني تاسو هم ورکړی چې په راتلونکي د دغه مظلوم ملت د خوارو وګرو له وجه خپلي اقتصادي او حرامي ډالري ګټي مه لټوی او په سیاسي لحاظ د طالب ننګه وګړی، ځکه چې که تاسو په واقعي معنی فکر وکړی، طالب ته یې او ته طالب یې، ځکه دواړه افغانان او مسلمانان یاست، که څه هم چې دغه ملت اوس غریب دی، که تاسو په ګډه سره د دغه ملت د شیرازی لپاره کار وکړی، دغه ملت به د خپلو معادنو او طبعې ذخائرو له برکته د دنیا په ستر اقتصادي بلاګ واړوی، بیا به تاسو د حرامو ډالرو مالکان نه بلکه د حلالو ډالرو مالکان یاست، بیا به خپل ډالر په ټیټو سترګو نه نه، بلکه په جګو سترګو سره جیب ته اچوی.

و ما ذالک علی الله بعزیز

# د حجاب تاریخ

مفتي حقمل

حجاب د اسلام د خوږ پیغمبر صلی الله علیه وسلم د مبارکو بیبیانو (د مسلمانانو د میندو) څخه پیل سو، د حجاب تر ټولو لومړی حکم په (۵) هجري کال کي نازل سو، دا هغه وخت وو چي نبي کریم صلی الله علیه وسلم د مسلمانانو د مور بي بي زینب رضي الله عنها سره نکاح وکړل؛ او حکم داسي وسو چي مومنان باید د خوږ پیغمبر صلی الله علیه وسلم و کور ته بي له اجازې داخل نسي، چي په دې ترخ کي نبي کریم صلی الله علیه وسلم د ټولو بیبیانو پر دروازو پر دې وځړولې او د ټولو غیر محرمو راتګ بند کړل سو او په یوه روایت کي داسي راغلي دي چي نبي کریم صلی الله علیه وسلم د حضرت بي بي عایشې رضی الله عنها د اکا زوی طلحه بن عبیدالله رضی الله عنه د بي بي عایشې رضی الله عنها سره د ملاقات څخه بند کړی.

له دې څخه دا جوته سوه چي د پردې حکم د لومړي ځل لپاره د مسلمانانو و میندو ته وسو او بیا په قرانکریم کي و ټولو مؤمنانو ښځو ته حکم وسو چي اوس ئې حکم و ټول امت مسلمه ته دی او اُمت مسلمه لونې باید حجاب خپل شعار وګرځوي.

د هجرت د (۳) کال څخه مخکي یو یهودي چي د بني قینقاع د یهودو څخه د مدینې منورې څخه په څه واټن باندي په خپل زرګرۍ (د زرو په پلورنځۍ) کي ناست وو، چي یوه ښځه تېرېدله او مخ ئې پټ وو، دې یهودي ډېر ورته وویل چي مخ لوڅ کړي، او آخر ئې په یو چم سره د هغې حجاب ایسته کې؛ هغې چیغې کړې، او نارې ئې د مدینې منورې په ښار کي یو مسلمان واورېدې، چي هغه راغی او ددې یهودي کار ئې وکی، ورپسي نور یهود راغلل او دا مسلمان ئې شهید کړ، دا خبر و نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته ورسېده؛ بالاخره نبي کریم صلی الله علیه وسلم یهود محاصره کړل، او د هغه یهودي ټول سامان ئې د غنیمت په توګه وویشي او څه وخت وروسته دا یهودي و شام ته ولاړی او ډېر ژرهغه هلته مړ سو، چي دا قصه مکمله په (سیرة ابن هشام، تاریخ کامل ابن اثیر) کي راغلې ده.

الله جل جلاله د بشریت ستر لارښود صلی الله علیه وسلم ته فرمایي:

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ أَنْ يُعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا. (سورة الاحزاب: ۵۹)

اې نبي (صلی الله علیه وسلم) ووایه ښځو ته دي، لوڼو ته دي او ښځو (د نورو) مومنانو ته چي خواره دي کړي پر ټولو ځانونو خپلو له ټکریو (پوړنو) خپلو څخه دغه (پټول د بدن) نژدې دی دې ته چي و به پېژندل سي دوی (چي اصیلی ښځي دي) نو تکلیف به ونسي رسولی دوی ته (په ګمان د وینځو) او الله ښه بخښونکی ډېر رحم والا دی .

د ایت تفسیر:

یعني د ټول بدن د پټولو څخه وروسته د ټوکر یوه برخه پر سر او یوه برخه یې د سر څخه راکښته پر مخ وځړوئ (مخ پټ کړی).

په روایاتو کي راغلي دي چي وروسته ددې آیت له نزوله سره مسلمانو ښځو به خپل مخونه او ټول بدنونه په خپلو ټکریو (پوړنو) سره پوټول او بیا به دباندي داسي وتلې چي یواځي به د دوی یوه سترګه ښکار کیده چي په هغه سره لاره ومومي، له دې نه معلومه او ثابته سوه چي د فتنې او فساد په وخت کي ښایې چي آزادي اصیلې ښځي خپله څېره هم پټه کړي، او وینځې د



شدید ضرورت له کبله نه دي مکلفې؛ حضرت شاه صاحب رحمة الله علیه لیکي: چي (ښه وپېژندله سي چي دا وینځه نه بلکه بي بي ده، د ننگ او ناموس مېرمن ده بدبخته او بد ناموسه نه ده، بد ذاته نه ده، بلکه دا نیکه بي بي او نیکبخته ده، نو ځکه بد نیته خلک هغوی ته لاس نه غځوي او حجاب ئې نښه ده، چي دا د حجاب د بهتري حکم دی، او د حیا سمبول دی. (تفسیر عثماني (کابلی تفسیر)، دوهم ټوک، ۷۰۵ صفحه(

علامه الوسي رحمة الله علیه په خپل تفسیر کي لیکي:

چي د حضرت ابن عباس رضی الله عنه د وینا مطابق جلباب وهغه چادر ته ویل کیږي چي ښځه ئي د پورته څخه تر کښته پوري پر ځان اچوي. (روح المعانی ج ۲۲، ص ۸۸)

د مخ پټول بلکل په ستر کې راځي،

په دې اړه هم ایت او هم احادیث راغلي دي، مخ د ښځي د ښایست مرکز دی نو څنگه به مخ نه پټوي؟! لڅ مخ گرځیدل حجاب نه بلکي یو ډول فیشن دی، دې ته حجاب نه وایي چي د حسن اصلي مرکز یې لڅ کړی وي او خلگ په فتنه کې اچوي!

د مخ پټولو حکم په قراني ایتونو او احادیثو کې راغلی دی،

الله جل جلاله ښځو ته داسي فرمایي:

وَقُلْ لِلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا....( سورة النور: ۳۰)

ژباړه: ایمان لرونکو ښځو ته وو‌ایه: د پردیو خلکو له کتلو څخه سترگي کښته واچوئ، خپل عورتونه وساتي، او خپل ښایست دي نه ښکاره کوي مگر هغه چي ددغه څخه (د کور د کار په وخت کي) ښکاره کیږي.

له کښته کتلو څخه مطلب دا دی چي د پردیو ښځو مخونو ته دي نه گوري ځکه مخونه د حسن، ښایست او تازه گي مجموعه او فهرست دی .

نو ځکه د کتلو له امله یې هغو ( ښځو) ته شوق پیدا کیږي چي بیا لویه فتنه ترې جوړیږي، لاندي مفسرینو اقوالو مطالعه کړی،

**تفسیر محقق بیضاوي:**

چي تفسیر یي ( تفسیر البیضاوي) ستایلو ته اړ نه دی د (إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا) په تفسیر کي داسي فرمایي:

والأظهر أن هذا في الصلاة لا في النظر فإن كل بدن الحرة عورة لا يحل لغير الزوج والمحرم النظر إلى شيء منها . ( تفسیر بیضاوي مکمل، مصري چاپ جلد ۴، مخ ۷۸)

ژباړه: د مخ ښکاره کول په کتلو کي نه بلکي په لمانځه کې پروا نه کوي ځکه د آزادي ښځي ( حوري) ټول بدن عورت دی،

بل ایت شریف کی الله تعالی فرمایي:

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ (الاية)

مشهور مفسر صحابي حضرت ابن عباس رضي الله عنه ددې ایت په تفسیر کي فرمايلي دي:

أمر الله نساء المؤمنين إذا خرجن من بيوتهن في حاجة أن يغطين وجوههن من فوق رؤوسهن بالجلابيب. "

ژباړه : د مسلمانانو ښځي په دې امر سوي دي چي له یوې سترگي پرته خپل سرونه او مخونه په لوی څادرنو (چادري) پټ کړي.

**تفسیر مدارک نسفي:**

فأمرن أن يخالفن بزيهن عن زي الإماء بلبس الملاحف وستر الرؤوس والوجوه فلا يطمع فيهن طامع. (تفسیر مدارک جلد ۳، ص ۳۱۳، طبع دارالکتب ایوبي بیروت )

ژباړه : د مسلمانانو ښځي په دې ماموري سوي دي چي د مینځیانو له جامو څخه ډېره وکړي ملاحف واغوندي ، سرونه او مخونه پټ کړي ترڅو څوک بده طمع ورته ونه کړي.

په دې اړه د ۲۴ مشهورو تفاسیرو تفصیل هم سته چي د مخ پټولو په اړه یې همدغه قراني ایتونه ذکر کړي دي.

## نبوي احاديث

د حضرت ابوبکر رضي الله عنه لور حضرت اسماء رضي الله عنها فرمايلي دي: كُنَّا نُغَطِّيَ وُجُوهَنَا مِنَ الرِّجَالِ. (مستدرک للحاکم، صحيح ابن خزيمة)

ژباړه: موږ به د خلګو څخه مخان پټول.

بل ځای حضرت اسماء رضي الله عنها فرمايي: کنا نغطي وجوهنا من الرجال في الاحرام. (رواه الحاکم وابن خزيمه)

ژباړه: موږ په احرام کې لا هم د نارينه وو څخه مخ پټوی.

عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ الرُّكْبَانُ يَمُرُّونَ بِنَا وَنَحْنُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم مُحْرِمَاتٌ فَإِذَا حَاذَوْا بِنَا سَدَلَتْ إِحْدَانَا جِلْبَابَهَا مِنْ رَأْسِهَا إِلَى وَجْهِهَا فَإِذَا جَاوَزُونَا كَشَفْنَاهُ. (ابوداود، بيهقي، احمد)

ژباړه: حضرت عايشه رضي الله عنها فرمايي چي موږ د رسول الله صلی الله عليه وسلم سره په احرام کي وو کله چي به سپاره خلګ زموږ طرف ته تيريدل نو په موږ کي به يوې د چادري تـوکر د سر څخه پر مخ را ايله کړی مخ به يې پټ کړی کله چي به دغه خلګ تير سول نو بيا به مو مخان لڅ کړل (ځکه په احرام کي مخ نه پټيږي خو په يوه طريقه سره به مخ حتماً پټوي).

نو لنډه دا چي په قران او حديث سره ثابته ده چي ښځه به حتماً مخ پټوي او د مذاهبو هم دا فيصله ده.

# له امريکا سره د طالبانو مذاکرات !

مبصر

يوه پاکستاني چېنل سره مې د حکمتيار مرکه ليده

حکمتيار په ټوله مرکه کې په طالبانو فشار راوړي چې افغان حکومت سره دې مذاکرات وکړي.خو کله چې ترې پوښتنه کېږي تاسې هم حکومت سره مذاکرات وکړل پايله څه شوه؟

سړی جذباتي شو وايي دا حکومت يو بې صلاحيته حکومت دی. وعده يې وکړه چې ټول بنديان په دوه مياشتو کې خلاصوو تر ننه يې خلاص نکړل. لس نور موارد همداسې معلق پاته دي چې ورته وايو ولی يې نه ترسره کوئ؟ وايي چې امريکا يې نه مني او موږ صلاحيت نلرو.

ددې ټولو خبرو او حقايقو باوجود بيا را نرم شي وايي چې طالبان دې قطر پر ځای ما غونډې کابل کې مذاکرات او مبارزه وکړي.

والله بالله زه چې د اوږدې مبارزې وروسته د يوه پښتون مشر او سياستوال داسې ضد او نقيض دريځ و وينم سخت ناهيلی شم.

که ما صلاحيت درلود قطعا مې هر چا ته په سياست کې د ورود او دخالت اجازه نه ورکوله. حکمتيار صېب ښه عالم او ليکوال دی خو سياست مدار قطعا ندی.

که دې مشر سياسي بصيرت او قاطعيت درلودای نو ولی به يې زنې لاندې رباني او اووه اته نور ګوندونه جوړېدل؟ د حکمتيار مديريتي ضعف وو چې مجاهد په نامه د روسانو يو پروټوکولي قومندان د مليونونو افغانانو د جهاد ثمره په سيند لاهو کړه. کابل د انسانانو مسلخ او د ښځو د عفت شيندلو او سينه بری مرکز شو.

د دې لوی شرم لمن بيا هم ملا محمد عمر نومي يو پښتون مشر۔ راټوله کړه کنې ترننه به يې بويونه ختل.

زه به ستاسې په اجازه يوځل بيا د لوی ملا صېب (ملا محمد عمر مجاهد ) روح ته درود واستوم چې امريکا په خپل اتلس کلن حضور کې ملياردونه ډالر صرف دېته ځانګړي کړل څو طالبان هم مجاهدينو په څېر لس ټوټې کړي. خو ياد مشر۔ د ټولو انشعاباتو مقابل لکه غر ودرېد او طالبان يې تر ننه په واحد صف ټينګ وساتل .

نن د خپل مؤسس مشر د سياسي بصيرت پر مټ تر يوه بيرغ لاندې د امريکا په مشری نړۍ سره همدا نن شپه د افغانستان پر برخليک په خبرو اخته دي.

ملا محمد عمر مې د يوې ژبې، قول او زړ پښتون ټيپ له امله په ټوله مانا په مشری منلی.

ارواح يې ښاده او هډونه يې په جنت شه!

# په دوحه کې د سولې

# د بين الافغاني کانفرانس پريکړه ليک



بسم الله الرحمن الرحيم

موږ د روان ۱۳۹۸ کال د چنګاښ په ۱۶ ــ ۱۷ چې د ۲۰۱۹ کال دجولای د مياشتي له ۷ ـ ۸ نيټي سره سمون خوري په دوحه کي دسولي لپاره د بين الافغانى کانفرانس ګډون کوونکي په افغانستان کي دسولي لپاره د جرمني د فدرالي جمهوريت او د قطر هيواد هڅو ته د ارزښت په سترګو ګورو او بين الافغاني ناستو د کوربتوب او سهولت برابرولو له کبله يې مننه کوو .

موږ د کنفرانس ګډون کوونکي همدارنګه د ملګرو ملتونو له سازمان، د سيمې له هيوادونو او په خاص ډول له امريکا سره دمذاکراتو او بين الافغاني ناستو لپاره دسهولت برابرونکو هيوادو څخه مننه کوو چې د افغانستان د مسئلې دحل لپاره يې لازم امکانات برابر کړي دي او هيله لرو چې ټول اړخونه به په راتلونکې کې همدغه همکاري پداسې ډول انجام کړي چې زموږ د هيواد او ولس په خير او يوې واقعي سولې ته د رسيدو سبب شي.

دا چې له اوږده بحران وروسته په افغانستان کې د ټلپاتې او سراسري سولې د راتګ لپاره وضعيت آماده شوی، نو دې هدف ته د رسيدو لپاره موږ دوحې د بين الافغاني کانفرانس ګډونوال په لاندې مواردو کې توافق ته ورسيدو.

موږ د کنفرانس د ګډون کونکو له ديده د خبرو اوتفاهم له لارې کولای شو چې د هيواد د نن او راتلونکي په اړه مشترک درک ته ورسيږو او هغه موانع چې پدې لاره کې شتون لري ليرې کړو. لدی کبله موږ ټول دخبرو د تداوم پر ضرورت ټينګار کوو.

لومړی: د بين الافغاني کنفرانس ټول ګډون کونکي بشپړ اتفاق لري چې په هيواد کې ټلپاتې سراسري او باعزته سوله چې د افغانستان د ټولو وګړو غوښتنه ده، د صادقانه همه شمولو بين الافغاني مذاکراتو په پايله کې شونې ده.

دوهم: افغانستان يو متحد، اسلامي هيواد او د ټولو ميشتو ورونو قومونو مشترک کور دی. د اسلامي نظام حاکميت، اجتماعي او سياسي عدالت، دوګړو اساسي حقوق، ملي وحدت، خپلواکي او ارضي تماميت هغه ارزښتونه دي چې ټول افغانان ورته تعهد لري.

دريم: افغان اولس چې په تېر تاريخ او په تيره بيا تيرو څلويښتو کلونو کې يې له خپل دين، هيواد، فرهنګ او خپلواکۍ څخه د دفاع لپاره ډيرې قربانۍ ورکړې دي، ټول نړيوال، سيمه ايز او کورني جهتونه دي زموږ د ملت لوړو ارزښتونو ته په احترام قائل شي. د دې لپاره چې په راتلونکې کې افغانستان بيا د جګړو او بحران شاهد ونه اوسي، بين الافغاني تفاهم او د هيواد د بيلابيلو اقشارو تر منځ پوهاوی يو مبرم ضرورت دی. نړيوال، سيمه ييز او ټول داخلي اړخونه د دې بهير ملاتړ ته رابولو او تقويه يې د ټولو په خير ګڼو.

څلورم: دا چې د جګړې په اوږديدلو سره هره ورځ زموږ ولس متضرر کيږي نو سولې او د بين الافغاني مؤثرو مذاکراتو ته د زمينه سازۍ لپاره لاندې اقدامات ضروري بولو:

الف ــ د جګړې ښکيل اړخونه دې د ګواښونو، انتقامي تهديدونو او جګړه ييزو ادبياتو په ځای په خپلو رسمي بيانونو کې له نرمې ژبې کار واخلي.

ب ــ دسولې دناستې ټول ګډونکونکي له امريکاسره په قطر کې د روانو مذاکراتو ملاتړ کوي او په افغانستان کې د روان تحميلي جنګ په پای ته رسولو کې يې موثر او مثبت قدم بولي.

پنځم: د دې لپاره چې زموږ ولس د جګړې له زيانونو خوندي او د جګړې ناخوالې تر ټولو ټيټې کچې ته راښکته اود

سولې لپاره داعتماد بهتره فضاءجوړه شي د جګړې ښکيل اړخونه دې لاندې اجراآت ترسره کړي.

الف ــ د سپين ږيرو، معيوبو او ناروغو بنديانو بې قيد او شرطه خوشي کول.

ب ــ دهيواد په ټولو سيمو کې د عام المنفعه بنسټونو لکه، د ديني او مذهبي مرکزونو، روغتونونو، بازارونو، د اوبو بندونه او کارځايونو د امنيت تضمين.

ج ــ په ځانګړې توګه د تعليمي بنسټونو لکه ښوونځيو، مدرسو،پوهنتونونو او نورو تعليمي ادارو حريم ته درناوی.

د ــ د ملکي خلکو د عزت، ژوند، مال او کورونو ساتنې ته ژمنتيا، او ملکي تلفات د صفر کچې ته راښکته کول.

شپږم: د اسلامي اصولو سره سم د تعليم، کار، سياسي، اقتصادي او ټولنيزو فعاليتونو په برخه کې د ښځو د حقوقو ډاډ او همدارنګه دمذهبي اقليتونو. ډاډ

اوم: د دوحې دکانفرانس ګډون کوونکی توافق لري چې د سولې تګ لاره به په لاندينيو مواردو څرخي:

الف - په افغانستان کې پر اسلامي نظام توافق.

ب - د سراسری سولی دپیل په شرایطو او عملي کیدو.

ج - د سولې ترون د موادو پر پلي کيدو او څارنې.

د - د بنيادي بنسټونو، دفاعی او نورو ملی نهادونوچي دټولو افغانانو ملکيت دی، دسولی له توافق څخه ورسته په اړيني اصلاح خونديتوب او غښتلتيا.

ه - د افغان کډوالو او د جنګ لکبله د داخلي بيځايه شويو کورنيو خپلو سيمو ته پر بيرته ستنيدلو.

و - د مرستندويه هيوادونو سره د سولې د ترون ورروسته د مرستو د نوې همکارۍ او اړيکو پر شرايطو.

ز - د افغانستان په اړه نړيوال کنفرانس کې د نړيوالو ضمانتونو سره د افغانستان د سولې پر توافقاتو تائيد .

ح - په نړيوال کنفرانس کې د سيمې، ګاونډيو او نورو هيوادونو له لوري په افغانستان کې د نه لاسوهنې ژمنې او توافق باندي ټينګار کوي .

اتم ــ موږ دسولي په اړه دټولو هڅو او لدې جملې د مسکو د تير بين‌الافغاني کنفرانس پريکړه ليک چي د روان کال د فبرورۍ په ۵مه او ٦مه نېټه جوړ شوی و تائيدوو او ټول ګډونوال په يوه خوله، له اسلامی کانفرانس، د ملګرو ملتو له سازمان، امنيت شوری، اروپايي ټولني او ټولو ګاونډيو هيوادو څخه غوښتنه کوو چي د سولې په اړه د دوحې د بين الافغاني کانفرانس پريکړي تائيد او ملاتړ يې وکړي.

ومن الله توفيق

## # مواظب فرزندان تان باشید!

والدین مسئولیت دارند مواظب سیستم‌های تعلیمی و تربیتی که در مکاتب به فرزندان شان داده می‌شود، باشند؛ تا از افکار و مفاهیمی که بصورت تنظیم شده، به شاگردان ارایه می‌گردد، آگاه شوند و آنچه را که با تربیت اسلامی در تناقض است معالجه نمایند؛ زیرا امروزه در سیستم‌های تعلیمی و تربیتی معارف، مفاهیم و دیدگاه‌های فراوانی را می‌بینیم که با «روح اسلام» در تضاد است و فرزندان ما را از جادهٔ رضایت الله باز می‌دارد که از آن جمله می‌توان به مفکوره‌های: احترام به منشور سازمان ملل، پیش‌کش هویت ملی، قومی، ملیت گرایی، وطن پرستی، دموکراسی و فاصله گرفتن از هویت دینی اشاره کرد.

این داده‌های کُشندهٔ استعمار باید پیوسته پی‌گیری و به اطفال توضیح داده شود که از کدام چشمه استعماری سرازیر شده و ما را به کدام گودال می‌کشاند. دغدغه اصلی والدین مسلمان باید این باشد که آیا فرزندان شان «اهل بهشت» اند یا که در اثر تزریق مفاهیم غربی «هیزمِ جهنم»؟

یوسف مي دانست که تمام درها بسته اند؛
اما بخاطر خدا و تنها به امید او،
به سوي درهاي بسته دويد و تمام درهای بسته برايش باز شد...
اگر تمام درهاي دنيا هم به رويت بسته شدند؛
تو هم بخاطر خدا و با اعتماد به او، به سوي درهاي بسته بدو
چون: خدای تو و یوسف یکیست.

# د ارګ د اخلاقي فساد د رسوايۍ کيسه

ف، فيض

افغانستان د حوادثو  داسې خونړيو طوفانونو په څېر کې نيولی دی چې د يوه پای او د بل سر وي .په افغانستان کې پر نورو جنايي جرياناتو سربېره د اخلاقي زوړتيا پيل له هغې ورځې وشو، چې په هېواد کې د لويديزې دموکراسۍ ډمامې و ډنګېدې .البته د موکراسی يو څه مثبت اړخونه هم لري؛ چې په ختيزو هېواد کې يې دا اړخونه هسې د تبليغاتو په حد کې دي؛ خو ډېر ترکيز يې پر هغو اړخونو دی چې سړی ورته د دموکراسۍ منفي اړخونه ويلای شي او لويديز استعماري ملکونه بيا په ختيزو ملکونو کې د هغې رعايت نه کوي، لکه څرنګه چې مولانا ابوالکلام ازاد مرحوم وايي هغه څه چې د فرانسې لوی انقلاب له ځانه سره راوړل او په حقيقت کې يې د غرب بڼه بدله کړه خو وروسته نور خو لا نور چې پخپله فرانسې رعايت نه کړل؛ د بېلګې په توګه هغه جنايات چې فرانسې له الجزاير سره وکړل يا يې دا دی د شلمې پېړۍ په وروستيو کې د امريکا په لمسه له ليبيا سره وکړل، همدغسې په ټوله کې چې لويديز استعمار څه له منځني ختيځ يا نورو هېوادو سره وکړل يا دا اوس يې چې په افغانستان کې څه روان کړي يا يې پر ايران کوم اقتصادي کلا بندي را وستې دا له دموکراسۍ يا د دموکراسۍ له مؤلفاتو سره څه اړخ لګوي؟

همدا علت دی چې علامه اقبال مرحوم وايي:

مـــی از ميخانـــهٔ مغـــرب چشـــيدم
بجـــان مـــن کـــه در ســـر خريـــدم
نشســـــتم بـــا نکويـــان فرنگـــی
و از آن بيســـــوزتر روزی نديـــــدم

افغانستان ته چې لومړی ځل د دموکراسۍ اثرات راغلل؛ اول څه يې چې وکړل هغه دا چې زموږ د محجبو مېرمنو د حجاب د اخيستلو هڅه وه؛ چې د امان ا ..خان تر سقوط وروسته دا حرکت بيا غلی شو؛ خو په ۱۳۳۸ کال کې چې داوود خان صدراعظم او ظاهر شاه پاچا و دې حرکت بيا سر راپورته کړ؛ خو د دوموکراسۍ نور مؤلفات ورسره نه وو؛ بلکې مطلقه د کتاتوري وه .د ۱۳۴۲ په حوت کې چې داوود خان له عظمی صدارته استعفا وکړه، بيا د دموکراسۍ باد وچليد، د ښځو نهضت په حقيقت کې خصوصاً د کابل ډېرې ښاري مېرمنې نيمې بربنډې کړې او د اروپايي لباس ماکسي او مينيژوب اغوستل دود شول .د اخلاقي انحرافاتو يو طوفان سر راپورته کړ چې دا طوفان د داوود په جمهوريت او ټوله کمونستي دوره کې روان و، خو د ظاهر شاه او داوود په واکمنيو کې بيا په ارګ پسې دغسې کيسې نه کېدې .که د ظاهر شاه په خپل کورني ماحول کې څه کېدل هم، هغه د ولس له سترګو پټ وو؛ خو د کمونستانو په وخت کې اخلاقي انحرافات اوج ته ورسېدل چې د طالبانو په وخت کې تر ډېره بريده کنترول شوه؛ خو د امريکا او ناټو په را تګ سره تر ډېره بريده کم عقيدې خلکو ته د اخلاقي فساد لاره هم پرانيستل شوه؛ خو کومې کيسې چې د ملي يووالي د حکومت پر مهال د ارګ له دېوالونو بهر ته را ووتې؛ نو سړی حيران شي چې دا څه روان دي؛ که څه هم چې ارګ له دې کيسو سره له ډېره وخته آشنا دی که يوائې د امير حبيب ا ..خان دوره، بيا د ظاهر شاه دوره، بيا د کمونستانو دوره په پام کې ونيسو هم کفايت کوي؛ خو ما ته پر دې خبره تأسف را ځي چې د هغو ټولو کميو سره پر دې ارګ د مجاهدينو او طالبانو دوره هم تېره شوه چې چا د

دې خبرو تصور هم نشو کولای او تر ۲۰۰۱ را وروسته د حامد کرزي په دوره کې چا دغسې ګونګوسې وا نهورېدې؛ خو تر ۲۰۱۴ را وروسته چې د ارګ فضا قاطع اکثریت د لویدیځ د هڅابه په خم کې له رنګ کسانو نه ډکه شوه اوس یې په باب داسې کیسې اورېدل کېږي چې سړی حیران شي او د داسې کسانو له خولې اورېدل کېږي چې په ډېرو دغو ماجرا ګانو کې به خامخا شریک وي .وایي کوم سړي بل چا ته ویلي وو چې خدای) ج (دې خوار کړه په هر خیرات کې دې ګورم، چې هغه یې په ځواب کې ویلي وو که ته په هغو خیراتو کې حاضر نه وې؛ نو ما به څه وګورې .نو دغه کسان چې په ارګ کې د اخلاقي فساد ادعا کوي ما ته ځکه ریښتیا ښکاري چې هغوی پخپله د ولسمشر تر زنې لاندې ناست وو او ډېر څه به یې په سترګو لیدلي وي او شک دی چې دوی به هم په دې ماجرا کې شریک وو، خو خبره یې اوس ځکه له خولې را ووته چې له ارګ سره یې ډکې مات شول .که څه هم اوس څوک په هغه پرونۍ بڼه ماکسي او مینژوب نه اغوندي، خو بالمقابل داسې لباسونه اغوندې چې تر ماکسي او مینژوب ډېر تحریکوونکي دي .پر دې اساس د نورو فسادونو تر څنګ اخلاقي فساد د تېرو دورو په پرتله په وار وار زیات شوی دی .په کوم هېواد کې چې اداري فساد داسې مرحلې ته ورسېږي چې په ټوله دنیا کې لومړی مقام وګټي او د ناروا عوایدو سرچینې که د ټولو خلکو پر مخ نه وي د ډېرو پر مخ خلاصې وي؛ نو طبیعي ده چې هېواد به د اخلاقي فساد د مردارۍ هغې مرحلې ته رسېږي چې بوی یې ان د بي بي سي راډیو له څپو نه هم پورته شي.

د اشرف غني یوه پخواني سلا کار جنرال حبیب ا ... احمدزي د لومړي ځل لپاره د ارګ د اخلاقي فساد له مخه پرده پورته کړه چې بیا څه موده وروسته ارګ لویې څارنوالۍ ته د هغې موضوع په باب د څېړنو حکم وکړ؛ خو دا څېړنې چې په کومه توګه پر مخ ځي دا فقط د ملت له اغفاله ور اخوا بله معنا نه لري، که چېرې حکومت ډېر مجبور کړای شي ښایي د دې موضوع را بربنډوونکو ته یو څه خفیف مجازات هم تجویز کړي، خو دا به هېڅکله په دې معنا نه وي چې ګڼې دا خبره دروغ وه، ځکه اوس خو بي بي سي دا موضوع نوره هم پسې رسوا کړه او د نورو شاهدانو له قوله یې رسوا کړه.

اوس د دې حکومت څه سم دي چې سړی به یې دا رسوایي وژاړي یا په حکومت کې له چا نه دا تمه کېدای شي چې دا موضوع په ریښتیا وڅېړي او عاملین یې مجازات کړي؛ خو خبره دا ده چې له دې مسالې سره د هېواد او ولس د پت او عزت خبره تړلې ده، ځکه دا نور نړیوال خو به وایي چې په ارګ کې یې د ولسمشر تر زنې لاندې داسې لوبې روانې دي؛ نو نور به څه حال وي، هغوی پر دې څه خبر دي، چې دا ملت یو ډېر با عزته ملت دی، دا فقط له لویدیځه یو څو را وستل شوي سیکولران او د بد اخلاقیو په خم کې ډوب کسان دي چې هغوی په حقیقت کې له دې هېواد سره بېګانه شوي، له ارزښتونو سره یې بېګانه شوي، له تاریخ او فرهنګ سره یې بېګانه شوي .دلته اوس یو بل ناورین را روان دی چې که ملا دی، که پیر دی، که سیاستوال دی که روښانفکر دی لږ شمېر یې د مسوولیت احساس کوي او خپل مسوولیت هم سرته رسوي، نور زیاتره وایي چې» بمن چی «که چېرې زموږ احساس نه وای مړ شوی باید پر دې مساله داسې غبرګون ښوول شوی وای چې کابل اداره یې دې ته اړ کړې وای چې د دې مسالې پوښتنه وکړي .په حقیقت کې په دې اړه د ارګوالو هېڅ عذر د منلو نه دی، عجیبه ده چې داشرف غنی داکتر عبدالله په خوا وشا کې دغسې لوبې کېږي او دوئ مړه ستونه اچولي سپونې هم نکړي.

معلومېږي چې دغه فجائع دیوه پلان او ژوري طرحي له مخې سرته رسول کېږي ترڅو اشرف غنی او باند یې خپلو اسلام دښمنه بادارانو ته وروښیي چې دوئ دومره لویدلي او پست خلک دي چې حتی له ارګه یې دغه کثافت پیل او نیت یې دی چې نورو افغانستان ته یې هم وغزوي

په مقابل کې له بادارانو غواړي چې لاس ورځخه وانخلي خوداسې ښکاري چې که اشرف غني هرڅومره داسلام او افغانیت دښمنی ته لاس واچوي نور هغه وخت رارسیدلي چې امریکا او غرب به یې په نیمه لار کې پرېږدي او دوه توته ارزښت به هم نه ورکوي.




# ګلځونه

## د استقلال طالبه!

ګټلی تا د جنګ مډال طالبه!
شه مبارک دې إستقلال طالبه!

أذان د فتحې ټول ولس ته وکړه
په لوړ منبر د وخت بلال طالبه

مات کړلو تا لوی أمپراطور د نړۍ
اوس دې مني ټول نړیوال طالبه

د کلي لارې دې خارې کليوال
له مودو ورکه کليوال طالبه

د سوبې ویاړ دې مبارک وي تاته
وطن خلاصیږي له إشغال طالبه

مظلوم ملت سترګې نیولي تاته
ولاړ دي ټول په إستقبال طالبه

دا ځل که بیا په ټول هېواد حاکم شوې
ګوره کوې به إعتدال طالبه!!!

له نظر مه شي د ښکلاوو میره!
څومره لرې حُسن، جمال طالبه

مهر کې سر تا أزادی ته ور کړ
ورته پر سر دې کړو سور شال طالبه

د دعا لپې مو نیولي خدای ته
تا ترینه غواړو کړو دا سوال طالبه

لاس او ګرېوان دی رقيبانو سره
(عرفاني) خلاص کړه له جنجال طالبه!

## غــزل

لمــر پــه را ختــو کــې دی رڼــا راځــي
ســوله را روانــه ده رښــتيا راځــي
ســتا د شــګو بنــد رقيبــه څــه فايــده؟
مخــې د ســيلاب لــره ګيــا راځــي
خوښــه دې چــې خانــدې او کــه ژاړې تــه
دا د تــاريخ جــبر خامخــا راځــي
مــا د ريبــار ســپين تنــدي کــې ولوســتل
تــوره شــپه شــوه ختمــه ســپين ســبا راځــي
مــات بــه زندانونــه شي کــه خــدای کــول
بيرتــه بــه يوســف تــه زليخــا راځــي
دومــره لــه ژړا سره بلــد شــومه
اوس پــه خوشــالۍ کــې هــم ژړا راځــي
جــوړ بــه شي ښــاغلی اســلامي نظــام
ســپين بيــرغ بــه بيــا پــه رپيــدا راځــي

ـــــــ ـــــــــــــحفيظ الدين پيرزاده

از من شنوای نامسلمان این کمال احمقیست
چون در اسلام ناب تنها تقوا معیار برتریست

# باغي خيالونه

همت کوچی



بیا یې پروت پټکی په غاړه کې ول ول دی
بیایې اور دانتقام په زړه کې بل دی

بیا د ټولي نړۍ مخي ته ولاړ دی
راوتلی دغزاوو په تکل دی

دا سړی دعدل لمردی دا عمردی
دې ساتلی داسلام وروستی مورچل دی

دادشرق اودادغرب دسرقاتِل دی
دا د ټولي اسلامي نړۍ اتل دی

دې سړي ددې وحشي تیارولـه غېږي
اوس اخیستي رڼاگانو پسي پل دی

چاته سیوری دی د خدای(ج) درحمتونو
چاته مرگ دی چاته زېری دآجل دی

دا چي دومره خپل دهدف ته ورنږدې شو
دې سړي کړی داورتل کي مزل دی

تل یاغي باغي خیالونه پکي نغاړي
د"همت کوچي" یاغي باغي غزل دی

## مبارکې سترگې

خدای دې خزانې مکړه ښکلې مبارکې سترگې
دامجاهدې هیبتې لـه غیرت ډکې سترگې

دعرش مالِکه تـه یې وکړې حفاظت تردېرو
ورکې دې نـه شي زموږلـه کلې داځېرکې سترگې

سمدم خوړل کوې لـه زړونو پورې ؤورې ؤوزې
نېستمنې مشـه ستاخوږې خوږې مردکې سترگې

پریرغلگروچې کوې هرخوابښکارې برېدونه
خلکو جانان زمالرې داسې ټوپکې سترگې

دادهرچادسترگو دومره صفتونه نکړم
دا زموږد ټول کلي ملالې هم ملکې سترگې

ډېرې یادېږې مې الله دړنگ اوبنگ ملگرې
مهاجریاره مسافرې نادرکې سترگې

> تابنده زخود فانی مطلق نشود
> توحید به نزد او محقق نشود
>
> توحید حلول نیست نابودن توست
> ورنه بـه گزاف، باطلی حق نشود

# اخلاقي فساد

## او فحشا زياتېدونکي بويونه

زمری افغان

په ملي وحدت حکومت کې پر لوړو پوړو چارواکو له پخوا د اخلاقي فساد تورونه وو .په دې اړه رسمي څه نه وېل کېدل، خو په سياسي محافلو کې به د ارګ د مشاورينو، وزيرانو او چارواکو د اخلاقي فساد کيسې وې .په ارګ کې دننه د اخلاقي فساد کېسې، په وزارتونو کې د اخلاقي فساد کيسې، د چارواکو د رسمي دفترونو سره نښتي د خوب د کوټو کيسې او په نوي ښار، وزير اکبرخان، شيرپور او نورو سيمو کې د چارواکو له خوا د نيول شوو کورونو کيسې چې د فحشا د مرکزونو په توګه کارول کېږي .

د اخلاقي فساد او فحشا ددې کيسو د پټولو ډېرې هڅې وشوې .په افغاني ټولنه کې يې په رسمي ډول را پورته کول سخت هم دي، خو آخر دا کيسې دومره ډېرې شوې چې نور يې کنټرولول سخت شول .د ځينو چارواکو، واليانو، معينانو او رييسانو د اخلاقي فساد ويډيوګانې او تصويرونه خپاره شول .وروسته د فوټبال د فدراسيون د ښځينه لوبغاړو د جنسي ځورونې کيسې را ووتلې، وروسته د ارګ يو لوړې پوړي چارواکي او په خاص امنيت کې د ولسمشر سلاکار جنرال حبيب احمدزي خوله پرانسته او آن په حکومت کې يې د ځينو کړيو يادونه وکړه چې په رسمي او سيستماتيک ډول فحشا ترويجوي .خبره په دې کې بنده نه شوه، ځينو ځورول شوو ښځو غږ پورته کړ .وروسته پرې رسنيو رپوټونه خپاره کړل چې وروستی هغه يې د بي بي سي رپوټ دی .

ورو ورو داسې ښکاري چې ارګ او حکومت له دې کيسې سره عادي کېږي، جدي يې نه ګڼي او حتی دا چاره په يو فرهنګ بدلېږي .ښايي ددې کارونو او بيا يې د رسوا کولو يو لامل هم دا وي چې دا هر څه عادي شي .که ستونزه هم وي، يوازې له دې سره ده چې فحشا بايد په زور ونه شي، نور که په رضا وي، ستونزه نه لري .له همدې امله هغه کسان چې فحشا کوي، نه يوازې دا چې منزوي کېږي نه، بلکې پرمختګ کوي او په حکومت کې لوړې دندې اخلي.

ارګ ددې کارونو مخالفت پر دې اساس نه کوي چې زموږ د ارزښتونو خلاف دي، بلکې په دې خاطر يې کوي چې سياسي مخالفين يې د حکومت پر ضد کاروي .که څه هم ډېره هڅه شوې چې دا غږ غلی شي، خو په پښتو کې مشهوره جمله ده چې " غږ به يې غلی کړې، خو بوی به يې څنګه کوې؟ "اوس ددې فحشا او کثافاتو بوی دومره زيات شوی چې پټول يې ناشوني دي .دا په واقعيت کې د غربي ارزښتونو، کپټلېزم، لبېرال ډيموکراسۍ او په غرب کې د روزل شوو کسانو خوسا بوی دی .دا بوی به هغه وخت ورک شي، چې له غربي ارزښتونو او د هغوی له خوا را لېږل شوو مشرانو ته) نه (ووايو او پر ځای يې خپل دين او خپلو ارزښتونو ته مخه کړو او د همدغو ارزښتونو پر اساس ټولنه او حکومت رهبري کړو.

## د پګړۍ په اړه مستند احاديث او روايات ....!!!

پګړۍ تړل د نبي اکرم ﷺ سنت ده، او واضحه ده چې دخيرالبشرﷺ په هر سنت، عمل او طريقه کې بې شماره روښانه ګټې دي.صرف دې دوه مبارکو احاديثو کې د پګړۍ فضليت وګورئ:

د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه څخه روايت دئ چې نبي کريم ﷺ وفرمايل: چې پګړۍ تړي (څکه پګړۍ) حلم (بردباري) زياتوي.

دحضرت عباده بن صامت رضی الله عنه څخه روايت دی چې نبی کريمﷺ وفرمايل:

ژباړه: (پر تاسو باندی د پګړۍ تړل لازم دی، دا ځکه چې دا د ملائيکو نخښه ده او تاسی د پګړۍ شمله شاته اړوئ.)

١- مستدرک: ٤ جلد، ص ٢١٤ ـ کتاب اللباس ٢- مشکوة شريف: ٣٧٧/ طبرانی



# ترامپ وپرونده های ناتمام جهانی اش

لطیف اراش

وقتی دونالد ترامپ وارد کاخ سفید گردید مثل سایر جمهوری خواهان سیاست تهاجمی نسبت به کشورهای جهان اختیار نمود.

در اولین اقدام از برجام بیرون شد و باچین وارد جنگ تجاری گردید،بالای کانادا و مکزیک فشار وارد نمود تا قرار داد نفتا را به میل آمریکا اصلاح کند.بعد از یک سال اقامت در کاخ سفید با رهبر کوریای شمالی در افتاد و برای ترساندن وی ناو هواپیما بر میشگان را به منطقه فرستاد،اما دیری نگذشته بود که با همکاری چین با کیم جونگ اون وارد مذاکره گردید.هنوز از جنگ تجاری با اروپا وترکیه فارغ نشده بود که دولت ونزویلا را تهدید به سرنگونی نمود وطیارات بزرگ جنگی را به مرز این کشور فرستاد.

بعد از گذشت سه سال هنوز هم سه پرونده جهانی که ترامپ باز کرده بود به نفع آمریکا بسته نشده است،ایران علی رغم تحریم های شدید و افول صادرات نفتی اش هنوز هم بر سر میز مورد نظر آمریکا جهت مذاکره باب میل پمپیو و بولتون حاظر نگردیده است.

سه دور ملاقات با کیم جونگ تنها منجر به آزادی سه شهروند آمریکایی - کوریایی و برگرداند اجساد سربازان آمریکایی که در جنگ میان دو کوریا کشته شده بودند گردیده است.

حکومت ونزویلا که قرار بود به اساس طرح پمپیو در کمتر از دو هفته سقوط کند هنوز هم به کمک روسیه وچین سرجایش است و نمایندگان نیکولاس مادرو و خوان گوایدو"که ازحمایت آمریکا برخوردار است "در ناروی در حال مذاکره هستند.

ترکیه به وجود تهدایدات آمریکا قرار است روز یک شنبه سیستم دفاعی موشکی اس ٤٠٠ را از روسیه تحویل بگیرد.

حالا با در نظر داشت مسایل فوق ترامپ برای انتخابات ۲۰۲۰به یک پیروزی در نظام بین الملل نیاز دارد ازهمین رو تیم مذاکره کننده وی به شدت تلاش دارد تا قبل از تاریخ یاد شده با طالبان به توافق برسند در صورت که آمریکا در سطح جهانی پرونده های بازشده را به نفع خویش به اتمام می رسانید در مورد توافق با طالبان این قدر عجله نمی کرد.

اگر آمریکا با طالبان به توافق برسد ترامپ در خطاب به ملت آمریکا خواهد گفت که:

-من به جنگی پایان دادم که درآن خون فرزندان شما و پول مالیه مردم ما هدر می رفت.و این مساله می تواند رای کسانی را که از جنگ افغانستان بیزار هستند و خواستار خاتمه آن است وهمچنان رای گروه های همسود ضد جنگ را جذب خواهند نمود.



# #افغانستان...

عبدالرحمن

کشوری که با حیا و عفت و غیرت دینی و ایمانی شهرت جهانی داشت...

نورین

امروزه شده بستر گرم دیموکراسی غربی از بازار ها گرفته الی خانه ها غرق فحشا و منکرات و فرهنگ های بیگانه شدن..

از شبکه تلویزیون ملی شروع که فحشا و بی حیایی نشر می‌کند الی اخیر که از اونها گله نداریم

سریالیست که در تلویزیون ملی بنظر می‌رسد .بنام مرسل ساخته

خود افغانهاست از سر تا آخر بی حیایی بی عفتی بی حجابی اختلاط زن و مرد

عاشقی و صد ها منکر را در این سریال میبینی نمیدانم کسانیکه در این سریال کار میکنن مرد شان غیرت دارند

زن های شان شوهر برادر یا پدر و مادر دارن یا خیر ؟

اینها بی حیا ترین و پست فطرت ترین انسان های هستن که میخواهند زشتی هارا در بین مردم شایع کنند وبه خانه ها و نسل آینده ما فقط

عشق و عاشقی و بی حیایی و بی عفتی را تحفه بدهند

الله میفرماید

إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَن تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ (۱۹)

هفتمین تأديب این است» :به‌راستي كساني كه دوست دارند، فاحشه شايع شود «يعني :زنا شيوع پيدا كند و منتشر گردد» در ميان كساني كه ايمان آورده‌اند «يعني :در ميان پاكدامنان با عفت از اهل ايمان» برايشان در دنيا عذابي دردناك است «با اجراي حد بر آنان» و «نيز برايشان عذابي است دردناك» درآخرت «با عذاب دوزخ» و خدا مي‌داند « رازهاي سينه‌ها را» و شما نمي‌دانيد «مگر آنچه را كه خدا خود، شما را به آن آگاه گرداند و كار اين گروهي را كه جز بدي و بداندیشي هدف ديگري ندارند، افشا سازد پس در حكم و حكمت به خداي متعال تسليم شويد.

یکی از ماده های قانون اساسی افغانستان همین است که دین رسمی دولت اسلامی است و نظام و شریعت اسلام تطبیق میشود.

حالا این ماده قانون هستی اصلا وجود ندارد یا که نمیخواهند وجود داشته باشد

اگر کشور کشور اسلامی است چرا جلو این فحشا و منکرات گرفته نمی‌شود ؟

اگر اسلامی است چرا بی حیایی و فحشا در خانه های مردم روشن است

از دیگران گله نداریم اونها فکر کنیم بیگانه استن

این تلویزیون ملی خوب تلویزیون رسمی دولتی است و مربوط یک کشوراسلامی که در قانون اساسی اش اسلامی نوشته است میشودچرا این بی حیایی میخواهد ترویج بدهد ؟

الله متعال زیبا میفرماید

ان الله لا یغیر و ما بقوم حتی یغیرو ما با انفسهم

الله حالت نیکوی هیچ قومی را تغیر نمیدهد مگر اینکه مردم خودشان و نفس های شان تغیر کند

حالا ما تغیر کردیم یا نه ؟

این عذاب پروردگاراست یانه ؟

حالتی که در کشور ما روان است والله عذاب الله است

بیاید برگردیم بسوی الله و کتاب الله نگذاریم بیشتر بی حیات بی عفت شویم....

التماس بیداری...

❊ ❊ ❊

# شهید مولوي

# عبدالمجید حنیف - تقبله الله -

مفتي محمدګل سعید

الحمد لله معز الإسلام بنصره ، مذل الشرك بقهره ومصرف الأمور بأمره، ومستدرج الكفار بمكره، وجعل العاقبة للمتقين بفضله امابعـــد:

أعوذ بالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيم بِسْـمِ الله الرَّحْـمَنِ الرَّحِيـــم . وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا ۚ بَلْ أَحْيَاءٌ عِندَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ.

د خلکو لاس کې دګـــلونو آمـيلونه ؤ نــــن
یا خو په کلی کې واده دی یا طالب شهید دی.

اسلامی نړۍ تـل پـه اسلامی شعائرو، مُقدساتو او عنعناتو د دفاع ډګرونه ګرم ساتلی په دی لار کې یی له هیڅ راز قُربانۍ، سربښندنو او فداکارۍ مخ نه ده اړولی وخت پـه وخت یـی د شیطان لارویـانو تـه غـابښ مـاتؤنکی ځوابونـه ورکړی .که یو طرف کفري لښکرو دمسلمانانو د لـه منځـه وړلو لپاره لښکر کښی کړي، ټلوالې او اتحـادیې یـې جـوړې کړي .کله د وارسا او کله دناټو په نوم یی پـه مسلمانانو ډلـه یزې حملې کړي، خو بل طرف بیا داسلامي نـړۍ لـه غیـرتې سرشـار او فـداکار حماسـی ځوانـان راوټوکیـدل او دمعـاذ، معـوذ، خالـدبن ولیـد، عمیربن الحمـام، محمـدبن قاسـم، موسـی بـن نصـیر، یوسُـف بـن تاشـفین او صـلاح الـدین ایـوبی)رضـی اللـه عـنهم ورحمهـم اللـه اجمعـین (ځلانـده تاریخونه یي را ژونـدی کـړل .دوی پـه دې لـړ کـې داوسـنۍ ناټوګۍ پر وړاندې په پوره متانت، میړانـه اوغیـرت ودریـدل، اګر که له عمرونو کم ؤ خو فولادي عزمونو یی لـه پـامیر او شمشاد سره ډغرې وهلې او دهمدوۍ متین عزمونه ؤ، چه د وخت فرعون) ډونالډ ټرمپ (یی خبروته مجبورکړ .

په خوښۍ نه وته سر زوره نړۍ* طالب جانان مې کـړه مجبوره نړۍ.

همـــــداسې ؤ !

راځئ دحق دلارې له همداسې لاروي سره څو شیبې پاتې شو او دزړه په سترګو دده ویاړونه او کارنـامې وګـورو او په لاره یی دتللو کلک هوډ وکړو .

د لوګر ولایت د محمداغی ولسوالی ځلانده ستوری او نامتو مجاهد، د کتاب ، منبر او قلم خاوند ، دحکومت او ریاست په چارو پوه ، د جهاد او سنګر نه ستړیدونکی مبارز ، د علم ،تقوا او زهد څښتن، د جامعه نورالمدارس استاذ او مدرس، د طیب کاروان مشر، د هیواد ستر علمي ،دیني او جهادي شخصیت ، دتورې او قلـم څښـتن، اتـل قهرمـان ابوشهید شهید مولوی عبدالمجید حنیف طیب تقبلـه اللـه د مرحوم حاجي تراب خان عیسی خیل ځوی د مرحوم حاجي نـادر خـان او مرحوم حـاجي عمراخـان وراره پـه ۱۹۷۱م / ۱۳۹۱ه ق کـال کـې دلـوګر ولایـت دمحمـدآغې ولسـوالۍ د زاهداباد کلي په یوه دین دوسته کورنۍ کې زیږیدلی دی.

زده کـړې :شـهید مولـوی صـیب ابتـدایی زده کـړې دباغبانانو په دارالنجات مدرسه کې وکړې ، مروجه فنون یي دچراټ په لویه جامعه دارالعلوم محمدیه کې دهغه وخت له نامتو عالمانو او مشایخو څخه ولوستل، موقوف علیـه ) وړه دوره (یي داسلامي امارت دقیام په وخت کې دجلال اباد په جهادي مدرسه کې وکړه او لویـه دوره یـي داکـوړې پـه لویـه جامعـه دارالعلوم حقانیـه کـې سـرته ورسـوله ، ممتـاز سـند دفراغت یي ترلاسه کړ او دیو نومیالي دیني عالم په حیث په په ۱۴۲۲ه ق کال را څرګند شو.شهید مولوی صیب دطالبانو په اسلامي تحریک کې لـه پخـوا څخـه دفعـال رکـن او دیـوه تکړه مجاهد په حیث ملګری ؤ . داسلامي امارت د قیام پـه وخت کې سپین بولدک ته لاړ او دطالبانو سره یوځـای شـو، بیا په جلال اباد کې دصحت عامې دمعاون په توګه ګمـارلی شو . نوموړي دطیب کاروان په نوم ځانته ګروپ درلـود او

دیوې فعالې ډلګۍ مشري یې په غاړه وه او هم د ولایتی کمیسون مرکزي غړی ؤ .یو ځل یې دلوګر ولایت دمرکز اړوند دسپیدسنګ په سیمه کې دامریکایانو شپږ دانې ټانګونه والوزول ، اوهم یې دپل قندهاري په سیمه کې زیات شمیر ټانګونه له خاورو سره خاورې کړل. لنډه داچې د لوګر په مرکز کې به چې ددښمن پر ضد کوم عملیات مجاهدینو تر سره کول نو شهید مولوی صیب به پکې رکن فعال ؤ .

شهید مولوی صیب له فراغت نه وروسته ددیني علومو تدریس هم کاوه . او دباغبانانو د لویې جامعې دارالعلوم نور المدارس کې فعال مدرس ؤ .نوموړی دملایي ترځنګ دتورې اوقلم خاوندواو دخدای) ج (دلارې یو غښتلی مجاهدهم ؤ، ده به دحضرت عبدالله بن مبارك په څېر نیم کال تدریس، نیم کال جهادکاوه، دصلیبیانوپر ضدیې نه یوازې وسله واله مبارزه کړې، بلکه په خپله ژبه یې هم دمجاهدوځوانانو احساسات راپارولی او ددین او هېواد له دښمنانوسره یې ډغروته هڅولي دي . شهیدمولوی صیب خورا نرم اخلاق درلودل او دملګرواو همزولو سره یی لوړ اخلاقی کردار ادا کاوه، اوجهادي تکلیفونه یی په خورا ورین تندی زغمل .مولوي عبدالمجید حنیف تقبله الله ددین او وطن ددښمنانو په وړاندې دزهرو په څېر تریخ او مسلمان ولس او مجاهدینو په مخ کې دنرم زړه خاوند ؤ .تل به یې په مبارکو شونډو مُسکاخوره وه.دښواخلاقوخاوندؤ، هرچا به چې ولیده نودا فکر به یي کاوه چی له ما سره به یې تر بل هرچا زیات تعلق اومینه وي.

شهادت :مولوی صیب د پنجشنبی په شپه له خپلو ملګرو سره په شهادت ورسید او د پنجشنبې په ورځ ) ۴/۷/۲۰۱۹ (دمازدیګر ۴ بجې یی جنازه د لوګر ولایت دمحمداغې ولسوالی په زاهداباد کلي کې ادا کړای شوه او پخپله پلرنۍ هدیره کې خاورو ته وسپارل شو .

کورنۍ :شهید مولوی صیب درې وروڼه درلودل چې محمدولي ، محمد بشیر او قاري عبدالهادي نومیږي . مولوی صیب اووه زامن درلودل ، مشر زوئ یې شهید ملا فضل هادي فاتح نومیده چې دوه کاله وړاندې دصلبیي یرغلګرو په ضد مبارزه او جهاد کې شهید شو ، دوهم زوی یي احمدهادي نومیږي ، چې دشهید مولوی صیب دفاتحې په ورځ یي پګړی دیني عالمانو اومشرانو دده په سر ورکیښوده . دریم زوئ یي عبدالحمید، څلورم زوئ یي عبدالحق ، پنځم زوئ یي سراج الحق ، شپږم زوئ یي اکرام الحق او اووم زوئ یي شمس الحق نومیږي .

شهادته په سلګو درپسې ګرزم
ببر سر په سوال زارو در پسې ګرزم
بس د لوي رب نه دي غواړم شهادته
ارام نکړم په ملکو درپسې ګرزم
بس دی نور مې چې ونه ځوروې ګرانه
شهادته نازولی طالب جان یم
مدرسه مې په نیمګړې حال کې پریښې
ګوره تاپسې ستړي او ستومان یم
شهادته دا اعزاز راته نصیب کړه
د کوثر په جام مې تږی زړګی موړ کړه
چې د مستو حورو جنګ را باندې جوړ شي
دومره ښکلی مې زخمونو باندې جوړ کړه



# د ذي الحجې

# دلسو ورځو او د قربانۍ فضيلت

مفتي محمدګل سعيد

د ذی الحجې دلسوورځوفضيلت:ستر ښښتن جل جلا له په همدې ورځو باندې قسم کړی دی . والفَجْر وليالٍ عَشْر .په دې آيت کې د يادوو شويو لسو ورځو په اړه لوی عالم شاه ولي الله دهلوي رح وايي :له] الفَجْر [څخه مراد د لوی اختر ورځ او له] وليالٍ عَشْر [څخه بيا مراد تر لوی اختر وړاندې لس ورځې دي.ابن تيميه او ابن قيم) رحمهم الله ( هم همدا خبره غوره ګڼلې ده.ابن کثير رح بيا د ايت کريمه لس شپې؛ د لوی اختر لومړنۍ لس ورځې بولي.دا لس ورځې د عبادت ځانګړې ورځې دي چې بايد الله جل جلا له پکې زيات يادکړی شي او همدارنګه لوی عبادت يانې حج هم په همدې ورځو کې ادا کېږي .ستر ښښتن جل جلا له فرمايلي:وَأَذِّن فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالًا وَعَلَى كُلِّ ضَامِرٍ يَأْتِينَ مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ * لِيَشْهَدُوا مَنَافِعَ لَهُمْ وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ فِي أَيَّامٍ مَّعْلُومَاتٍ عَلَى مَا رَزَقَهُم مِّن بَهِيمَةِ الْأَنْعَامِ - د حج سوره، ۲۸ نمبر ايت.ژباړه :او په خلکو کې د حج اعلان وکړه، نو تاته به راځي پلي او سواره په هره ګرنډۍ سپرلۍ،د خپلو ګټو لپاره به له هر لرې ځای راځي، او په معلومو ورځو کې د الله جل جلا له نوم ياد کړئ په هغه څارويو چې در کړل شوي دي.ځيني دينپوهان په دې عقيده دي چې د نړۍ بهترينې ورځې د لوی اختر لومړۍ لس ورځې دي چې د عرفات ورځ هم پکې ده .عرفات هغه ورځ دی چې الله تعالی پکې د جهنم دروازې تړلې وي، د خپلو بنده ګانو دعاګانې قبلوي، د هغوئ ګناهونه بخښي او جنت ته يې دننه کوي.ډېری صحابه کرام او ستر علماء وايي چې : د أَيَّامٍ مَّعْلُومَاتٍ موخه د لوی اختر اولې لس ورځې دي.په يادو لسو روځو کې دوهمه ستره ورځ د لوی اختر ورځ ده چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم يې په اړه فرمايي:إِنَّ أَعْظَمَ الْأَيَّامِ عِنْدَ اللَّهِ تَبَارَكَ وَتَعَالَى يَوْمُ النَّحْرِ ثُمَّ يَوْمُ الْقَرِّ -د ابو داود سنن. ژباړه :ربښتيا هم چې الله جل جلا له ته تر ټولو ورځو غوره ورځې د قرباني او د قربانۍ تر ورځې وروسته ) يانې د لوی اختر دوهمه (ورځ ده.د دې ورځې په اړه نبي کريم صلی الله عليه وسلم يو ځای داسې فرمايي:عن أبي هُرَيْرَةَ قَالَ :جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صلی الله عليه وسلم فَقَالَ:دُلَّنِي عَلَى عَمَلٍ يَعْدِلُ الْجِهَادَ؟ قَالَ:لاَأَجِدُهُ .قَالَ:هَلْ تَسْتَطِيعُ إِذَا خَرَجَ الْمُجَاهِدُ أَنْ تَدْخُلَ مَسْجِدَكَ فَتَقُومَ وَ لاَ تَفْتُرَ، وَتَصُومَ وَ لاَ تُفْطِرَ؟ قَالَ :وَمَنْ يَسْتَطِيعُ ذَلِكَ؟ بخاري شريف ژباړه :ابو هريرة وايي چې يوه ورځ يو سړی پيغمبر صلی الله عليه وسلم ته راغی او ويې ويل : ما ته داسې کار را وښيه چې بدله يې له جهاد سره برابره وي؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وويل : چې داسې کار نشته .بيا يې ورته وويل چې :ته داسې کولی شې چې کوم وخت مجاهد له خپله کوره ووځي او ته جومات ته داخل شې، دومره لمونځ وکړې چې ستړی نشې او په دوامداره توګه پرته له ماتولو روژه ونيسې؟ هغه ځواب ور کړ چې دا د چا په وسه پوره ده؟نبي کريم صلی الله عليه وسلم د دې لسو روځو د فضيلت په اړه فرمايي :عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ النَّبِيِّ صلی الله عليه وسلم أَنَّهُ قَالَ :مَا الْعَمَلُ فِي أَيَّامٍ أَفْضَلَ مِنْهَا فِي هَذِهِ .(قَالُوا !وَلَا الْجِهَادُ ؟ قَالَ، وَلَا الْجِهَادُ، إِلَّا رَجُلٌ خَرَجَ يُجاهد بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ فَلَمْ يَرْجِعْ بِشَيْءٍ . ترجمه :له حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه څخه روايت دی چې نبي رسول صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي چې د الله تعالی په نزد داسې کومه ورځ نشته چې ښه او نيک عملونه دې هغه جل جلا له ته دومره خوښ وي . صحابه کرامو وويل چې؛ اې د الله رسوله :ايا جهاد هم د

دې ورځو د نیکو کړنو په اندازه نه دی؟ هغه صلی الله علیه وسلم وفرمایل :هو جهاد هم پدی ورځو کې د تر سره شوي ښه کار ) عمل ( سره سم نه دی.لاکن پرته له هغه کسه چې خپل سر او مال دواړه ور سره یوسي خو یو هم را نه وړي ) یانې چې د الله تعالی په لاره کې شهید شي .(پدې لس ورځو کې د ښه چار ) عمل ( بدله د الله تعالی په لاره کې تر جهاد هم ډېره ده .په دې ورځوکې بایدمسلمان پر خپلو تېرلو تېرو ګناهونو د زړه له تله توبه وباسي ،تسبیح ، تحمید ، تهلیل او په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې دې درود وویل شي .له ابن عمر رضي الله عنه څخه حدیث روایت شوی چې :ما من ایام اعظم و لا احب الی الله العمل فیهن من هذه الایام العشر فاکثروا فیهن من التهلیل و التکبیر و التحمید-رواه احمد .امام بخاري لیکلي دي چې: کان ابن عمر وأبو هریرة یخرجان إلی السوق في أیام العشر یکبران ویکبر الناسُ بتکبیرهما .ژباړه :ابن عمر او ابو هریره ) رضی الله عنهم ( دواړه به په دې لسوورځو کې بازارونو ته وتل، تکبیرونه ) الله أکبر الله أکبر، لا إله إلا الله، والله أکبر الله أکبر ولله الحمد ( به یې ویل او نورو خلګو به هم ور سره بدرګه کول.پورتني تکبیرونه دې خلګ د عرفات د ورځې له ماسپښین او حاجیان دې د اختر د ورځې له ماسپښین وروسته د هر لمانځه په پای کې؛ د اختر تر دریمې ورځې ووایي.په دې ورځو کې د روژې نیول ډېر زیات ثواب لري .د عرفات د ورځې روژه پرته له حجاجو؛ نورو مسلمانو ته سنت ده .ځکه نبي کریم صلی الله علیه وسلم یې په اړه فرمایي:صِیامُ یُومِ عَرَفَة، أحْتَسِبُ علی اللهِ أنْ یُکَفِّر السنَةَ التِي قَبْلَه، والسّنَةَ الَتِي بَعْده.ژباړه:امیدلرم چې د عرفې ) عرفات ( د ورځې روژه به د تېر او راتلونکي کال ټولو ګناهونو ته بدله وي.له حفصې رضي الله عنها څخه روایت شوی دی چې :رسول الله صلی الله علیه وسلم د عاشورا د ورځې، د دغو لسو ورځو او د هرې میاشتې د دریو ورځو روژې نه پرېښودې.

قرباني:قرباني لکه لمونځ ځانته وخت لري تر هغه وخت مخکې د قرباني کول جواز نلري ، د اختر د ورځې د سهار تر داخلیدو مخکې قرباني کول نه صحیح کیږي ، کله چې سهار داخل شي ، نو د قرباني وخت هم شروع کیږي ، لیکن په هغه علاقو کې چې هلته د اختر لمونځ نه کیږي ، د هغو لپاره بل شرط نشته ، خو په ښارونو کې ، یعني هلته چې د اختر لمونځ ادا کیږي ، د هغو لپاره که څه هم د قربانۍ وخت داخل دئ ، مګر د دوی لپاره دا شرط دئ چې د اختر تر لمانځه وروسته به وي ، مخکې صحت نلري ، خو دا بیا ضرور نه دئ چې تر خطبې ویلوبه وروسته وي ، بلکه که تر خطبې مخکې ذبح شي نو هم صحیح دئ . او اخیري نیټه یې د اختر دریمه ورځ ده ، مطلب دا چې د




قرباني وخت درې ورځې او دوه شپې دئ . البته بهتره داده چې د ورځې وي ، د شپې مکروه بلل کیږي ، دارنګه په ورځو کې لومړۍ ورځ تر نورو ډیره بهتره او د اجر په اعتبار زیاته ده په بدایع الصنایع کې دي :فَلَا يَجُوزُ لِأَحَدٍ أَنْ يُضَحِّيَ قَبْلَ طُلُوعِ الْفَجْرِ الثَّانِي مِنْ الْيَوْمِ الْأَوَّلِ مِنْ أَيَّامِ النَّحْرِ وَيَجُوزُ بَعْدَ طُلُوعِهِ سَوَاءٌ كَانَ مِنْ أَهْلِ الْمِصْرِ أَوْ مِنْ أَهْلِ الْقُرَى ، غَيْرَ أَنَّ لِلْجَوَازِ فِي حَقِّ أَهْلِ الْمِصْرِ شَرْطًا زَائِدًا وَهُوَ أَنْ يَكُونَ بَعْدَ صَلَاةِ الْعِيدِ ، لَا يَجُوزُ تَقْدِيمُهَا عَلَيْهِ عِنْدَنَا .

قرباني کول پر هغه چا واجبه ده چې عاقل ، بالغ ، شتمن ، او مقیم وي ، یعني خاوند د نصاب وي او مسافر نه وي ، که خاوند د نصاب نه ؤ ، یا ؤ خو مسافر ؤ ، نو پر هغه قرباني کول نشته . هغه نصاب او شتمني چې پر

صاحب یې قرباني واجب ګرځي ، د سرسایې نصاب دئ ، یعني که تر ضرورت او حاجت زیات دومره شیان له یو چا سره موجو دوه ، چې د هغو قیمت دوه پنځوس نیمې تولې سپین زر کیږي ، نو پر دغسي چا باندې قرباني کول واجب ګرځي . درې جامې په حاجت کې داخلې او څلورمه یې تر ضرورت زیاته ګڼل کیږي ، د سکونت او استوګنې له کورڅخه پرته بل کور تر ضرورت زیات دئ . په یوه سرائ کې تر دووه خونو زیاتې غرفې او کوټې تر حاجت زیاتې دي ، دارنګه تر حاجت زیاتې غالۍ هم په نصاب کې شمیرل کیږي . دارنګه هغه څوک چې کتابونه ولري ، که دده د خپلې مطالعې لپاره ؤ ، نو هغه کتاب په نصاب کې داخلیږي کوم چې له ده سره د هغه بله نسخه هم موجوده وي ، او که یو چا د نورو د مطالعې لپاره کتابونه ایښې ؤ، نو دا هم په نصاب کې شاملیږي . پر هغه ښځه هم قرباني شته چې مهر یې معجل وي ، او په مهر مؤجل کې قرباني نشته . نابالغ او مجنون که د نصاب خاوند ؤ ، نو پدې اړه صحیح قول دادئ چې پر دوی قرباني کول نه دئ واجب . پلار او ولي یې نشي کولائ چې د هغوی له مال څخه قربانی وکړي ، البته له خپله ماله څخه یې کولائ سي . دارنګه پر مسافر هم قرباني کول نه دئ واجب ، البته مستحب کار دئ چې وبې کړي ، که مسافر د قرباني په ورځو کې مقیم شو ، که څه هم د اخیرې ورځې یوه ګړۍ پاته وي قرباني وربانډې واجب ګرځي. و في المبسوط : قَالَ ) وَهِيَ وَاجِبَةٌ عَلَى الْمَيَاسِيرِ وَالْمُقِيمِينَ عِنْدَنَا ( وايضا فيه» : وَإِنْ كَانَ لِلصَّبِيِّ مَالٌ فَقَالَ بَعْضُ مَشَايِخِنَا رَحِمَهُمْ اللَّهُ تَعَالَى عَلَى الْأَبِ وَالْوَصِيِّ أَنْ يُضَحِّيَ مِنْ مَالِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَلَى قِيَاسِ صَدَقَةِ الْفِطْرِ الْأَصَحُّ أَنَّهُ لَا يَجِبُ ذَلِكَ ، وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَفْعَلَهُ مِنْ مَالِهِ . فقهاءکرامو لیکلي دي چې د قبرو د زیارت لپاره څلور ورځې تر ټولو بهترې ورځې دي : )دوشنبه ، پنجشنبه ، جمعه او هفته .(همدارنګه په هغووختونوکې زیارت کول ډیر فضیلت لري کوم چې شریعت له برکته ډک وختونه بللي ، لکه د برائت شپه، د ذی الحجې د میاشتې اولني لس ورځې ، ددواړو اخترنو ورځې ، او د محرم لسمه .له دې څخه معلومه شوه چې د اختر په ورځ د وفات شویو قریبانو مقبرې ته تلل ، او دعا ورته کول ، مستحب او افضل کار دئ . قال في الهندية : وأفضل أيام الزيارة أربعة يوم الاثنين والخميس والجمعة والسبت والزيارة يوم الجمعة بعد الصلاة حسن ويوم السبت إلى طلوع الشمس ويوم الخميس في أول النهار وقيل في آخر النهار وكذا في الليالي المتبركة لا سيما ليلة براءة وكذلك في الأزمنة المتبركة كعشر ذي الحجة والعيدين وعاشوراء وسائر المواسم كذا في الغرائب.

هغه څوک چې له ده څخه داخترپه لمانځه کې د اول رکعت تکبیرونه فوت شي ، او امام قرائت وایي ، نو دی به له تکبیر تحریمه وروسته درې تکبیره ووایي ، او همدا ډول دې له امام سره شریک شي . هغه څوک چې له امام سره د رکوع په حال کې یو ځائ شي ، نو که دده په فکر ده درې واړه تکبیرونه په ولاړه ادا کولائ شي ، او له امام سره یې رکوع نیولئ شوائ ، نو په ولاړه دې تکبیرونه ووایي لاسونه دې غوږونو ته وړي ، او که د رکوع د تیریدو ویره وه ، نو په رکوع کې به درې تکبیره ووایي ، خو لاسونه به غوږو ته نه پورته کوي . او که له یو یا دوو تکبیرنو ویلو وروسته سملاسي امام پورته شو ، نو له ده څخه پاته تکبیرونه ساقطیږي ،او که یو څوک له امام سره د اول رکعت د قومې په حال کې یو ځای شو ، نو هغه به اول رکعت سره له تکبیرونو راګرځوي ). إذا أدرك الإمام في صلاة العيد بعد ما تشهد الإمام قبل أن يسلم أو بعدما سلم قبل أن يسجد للسهو أو بعدما سجد للسهو ولم يسلم الإمام فإنه يقوم ويقضي صلاة العيد. )

دلوی اخترپه ورځ سهار وختي راپورته کیدل ، غسل او مسواک وهل ، پاکې، ستره او عمده جامې اغوستل ، عطر او خوشبویي لګول ،د اختر تر لمانځه مخکې خوراک نه کول ، عید ګاه ته د تلو په وخت په لوړ اواز تکبیرونه ویل مستحب دي .

قرباني ته د فقهې په اصطلاح کې» اضحیه «ویل کیږي، اضحیه د هجرت په دوهم کال مشروع شوې ده ، په همدغه کال د دواړواخترنولمونځ اوزکات هم مشروع ګرځیدلی دی .فقهاء کرامو د اضحیې د ثبوت لپاره له قرآن

څخه دغه مبارک آیت وړاندې کوي ، چې الله پاک فرمايي : فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ) الكوثر ۲ . (ځينو مفسرينو ددې تفسير پدې ډول کړی دی چې په دې آيت کې له لمانځه څخه د اختر لمونځ او له نحر څخه قرباني کول مراد دي . او په احاديثو کې د قرباني د ثبوت لپاره ډېر دلايل موجود دي ،چې يوڅوېې دادي :عَنْ أَنَسٍ قَالَ ضَحَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِكَبْشَيْنِ أَمْلَحَيْنِ أَقْرَنَيْنِ ذَبَحَهُمَا بِيَدِهِ وَسَمَّى وَكَبَّرَ وَوَضَعَ رِجْلَهُ عَلَى صِفَاحِهِمَا .ژباړه :له حضرت أنس څخه روايت دئ چې رسول الله) صلى الله عليه وسلم (دوه سپين رنګي پسونه چې ښکرونه يې درلودل پخپل لاس، پدا ډول ذبح کړل چې خپله مبارکه پښه يې د هغه د غاړې پر طرف کيښودله او بسم الله او الله اكبر يې ووايه .

عن أبي هريرة أن رسول الله قال :من كان له سعة، ولم يضح، فلا يقربَّن مصلاَّنا .يعني هغه څوک چې شتمن وي او قرباني ونکړي ، هغه دې خامخاضرور زموږ عيدګاه ته نه حاضريږي . دارنګه روايت دئ چې د قربانۍ په ورځو کې الله) جل جلاله (ته قرباني تر هر نيک کار ډېره زياته خوښه او بهتره ده ، د قرباني د هر وېښته او وړۍ په بدل کې قرباني کونکي ته يوه نيکي ورکول کيږي . د قرباني د وينې څاڅکئ مخکې له دې چې ځمکې ته رسيږي ، د الله په دربار کې قبوله ګرځي . قرباني واجب عمل دی اوبهتره داده چې د قرباني حيوان پخپل لاس ذبحه کړای شي ، او يا د قرباني د ذبحې په وخت کې حاضر اوسي ، او د ذبحې آله بايد ښه پرې کونکې او تيره وي ، او مذبوح ته تر هغه بايدانتظاروکاږي تر څو يې له ټول جسد څخه حيات ووځي .او د قرباني د غوښو په اړه مناسب طريقه داده چې درې برخې کړی شي ، يوه برخه يې د ځان لپاره راوګرځول شي ، دوهمه خيرات او دريمه يې پر قريبانو وويشل شي ، که څه هم هغوی ځانته قرباني کړې وي . ويستحب يوم الفطر أن يطعم الإنسان قبل الصلاة وفي الأضحى بعدها ويغتسل فيهما ويتطيب ويلبس أحسن ثيابه ويتوجه إلى المصلى وهو غير مكبر جهرا بخلاف الأضحى فإنه يكبر فيه جهرا طول الطريق] تحفة الملوك ) . [وَأَمَّا ( الَّذِي يَرْجِعُ إلَى الْأُضْحِيَّةَ فَالْمُسْتَحَبُّ أَنْ يَكُونَ أَسْمَنَهَا وَأَحْسَنَهَا وَأَعْظَمَهَا لِأَنَّهَا مَطِيَّةُ الْآخِرَةِ قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ } عَظِّمُوا ضَحَايَاكُمْ فَإِنَّهَا عَلَى الصِّرَاطِ مَطَايَاكُمْ { وَمَهْمَا كَانَتْ الْمَطِيَّةُ أَعْظَمَ وَأَسْمَنَ كَانَتْ عَلَى الْجَوَازِ عَلَى الصِّرَاطِ أَقْدَرَ ، وَأَفْضَلُ الشَّاءِ أَنْ يَكُونَ كَبْشًا أَمْلَحَ أَقْرَنَ مَوْجُوءًا]بدائع الصنائع . [والمستحب أن تكون الأضحية أسمنها وأحسنها وأعظمها , وأفضل الشاة أن تكون كبشا أملح أقرن موجوء , أو أن تكون آلة الذبح حادة من الحديد , ويستحب أن يتربص بعد الذبح بقدر ما يبرد ويسكن من جميع أعضائه وتزول الحياة من جميع جسده , ويكره أن يضحى ويسلخ قبل أن يبرد , هكذا في البدائع . والأفضل أن يذبح أضحيته بيده إن كان يحسن الذبح ; لأن الأولى في القربات أن يتولى بنفسه , وإن كان لا يحسنه فالأفضل أن يستعين بغيره ولكن ينبغي أن يشهدها بنفسه , كذا في الكافي . ويستحب أن يأكل من أضحيته ويطعم منها غيره , والأفضل أن يتصدق بالثلث ويتخذ الثلث ضيافة لأقاربه وأصدقائه , ويدخر الثلث ,ويطعم الغني والفقير جميعا , كذا في البدائع . ويهب منها ما شاء للغني والفقير والمسلم والذمي , كذا في الغياثية. ولو تصدق بالكل جاز , ولو حبس الكل لنفسه جاز , وله أن يدخر الكل لنفسه فوق ثلاثة أيام إلا أن إطعامها والتصدق بها أفضل إلا أن يكون الرجل ذا عيال وغير موسع الحال فإن الأفضل له حينئذ أن يدعه لعياله ويوسع عليهم به , كذا في البدائع]. الهندية]





# دوستی با نامحرم

م عبدالله

بعضی از پسران و دختران به این بهانه که ما فقط دوست هستیم با نا محرم روابط دوستی بر قرار می کنند اما این را فراموش می کنند که الله سبحانه و تعالی هرنوع رابطه و دوستی را با نا محرم حرام قرار داده است ولی اینها به این بهانه در پوهنتون یا محل کار یا در دنیای مجازی با نامحرم چت کرده و رابطه برقرار می کنند.

خواهر و برادرم؛ به یاد داشته باش ما مسلمان هستیم و الله سبحانه وتعالی به من و تو چی امر فرموده است!

رسول خدا صلی الله علیه وسلم می فرمایند» : لَايَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ، فَإِنَّ الشَّيْطَانَ ثَالِثُهُمَا .«یعنی» : هیچ مردی با زنی خلوت نکند، چرا که نفر سوم آنها شیطان است «به روایت احمد و ترمذی.

در حالی که در دنیای مجازی بین آن دو نَفَر خلوتگاه إیجاد می شود . حتی این خلوت چت کردن به مراتب از خلوت حقیقی بد تر و زشت است، چون پروگرامر های دنیای مجاذی طوری برنامه ریزی کردند که اگر طرفین نتوانند حرف دل خود را بگویند توسط شکلک ها میتوانند حرف دل خود را بگویند و آهسته آهسته روی حرف های دل شان سخن بگویند . خلاصه اینکه بدانید که چت کردن با نامحرم هیچ توجیه ندارد!

الله متعال میفرماید »:إِنِ اتَّقَيْتُنَّ فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ فَيَطْمَعَ الَّذِي فِي قَلْبِهِ مَرَضٌ وَقُلْنَ قَوْلًا مَّعْرُوفًا.«

یعنی» :پس به گونه‌ای هوس‌انگیز سخن نگویید که بیماردلان در شما طمع کنند، و سخن شایسته بگویید.«

بناء شیطان بسیار زیرکانه عمل می کند، هیچگاه بدون مقدمه کسی را به گناه نمی کشاند !بلکه اول وی را آماده پذیرش گناه می کند و برای این کار برایش مقدمات کوچکی از گناهان کوچکتر مهیا و فراهم می کند و آنگاه وی را توجیه می کند تا مبادا از همان ابتدای نقشه از گناه دست بکشد.

الله سبحانه وتعالی می فرماید » : وَلاَ تَقْرَبُواْ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ) «انعام .(۱۵۱

یعنی :نزدیک کارهای زشت نروید، چه آشکار باشد چه پنهان.

که در این آیه مبارکه، خدای متعال نمی فرماید فواحش را انجام ندهید !بلکه می فرماید حتی به آن نزدیک نشوید، زیرا نزدیک شدن به گناه، مقدمه ی آن است و اگر کسی مقدمات گناه را برای خود مهیا نکند، از افتادن در گناهان در امان می ماند، و شیطان این را خوب می داند و لذا ابتدا انسانها را به گناه کوچکتر نزدیک می کند بعد.....

و قطعا گناهان بزرگتر) مانند زنا (از گناهان کوچکتر) مانند ارتباط ابتدائی با نامحرم (شروع می شوند، یعنی گناه کوچکتر مقدمه ای برای گناه بزرگتر است، و الله تعالی مومنان را ارشاد می کند تا مبادا مقدمات را فراهم کنند.

با وجود اینکه دو طرف فکر می کنند که در این ارتباط فتنه ای نیست،

اما شیطان دست از سر آنها برنمی دارد تا اینکه مرد را بوسیله زن و زن را بوسیله مرد می فریبد و دچار وسوسه مینماید.

حتی بعضی ها خیلی مطمئن اند و میگویند ما با هم خواهر و برادر ایم و یکدیگر را خواهر و برادر خوانده ایم، بناء نیت ما بد نیست ، ما روی مسائیل اسلامی بحث و گفتگو میکنیم ....خلاصه اینکه باز هم تکرار میکنم، شیطان دست از سر آنها برنمی دارد تا اینکه مرد را بوسیله زن و زن را بوسیله مرد می فریبد و دچار وسوسه مینماید.

پس مراقب باشید و در همین ابتدای کار، شیطان را نامید و مایوس گردانید و کاری نکنید که خدای متعال به آن خشنود نیست و بلکه این تنها شیطان است که از ادامه ارتباط شما— ولو آنکه از نظر شما رابطه ی ناچیز و پاک باشد — خوشحال است.

ای برادر و خصوصاً ای خواهر نادانم؛ هنوز وقت است بسوی الله سبحانه و تعالی رجوع کنید قبل ازینکه رسوا و بدبخت دنیا و آخرت شوید.



شاید بعضی ها بگویند که ما بالای خود حاکمیت داریم، بدانند که آنها در مرحله جوانی یعنی دیوانگی قرار دارند، از دسایس شیطان و خواهشات نفس بی خبرند .بسیاری ها را همین جمله تباه ساخته است!

«پس بنابراین :دختر و پسر جوان مسلمان!..

از الله متعال بترسید.

اگر ایمان به الله و رسولش دارید!

اگر ایمان به قیامت دارید!

از این کارهای زشت و ناپسند دست بکشید، زیرا در آخر پشیمان می شوید!

«یادتان باشد که:

دختری با پسری نامحرم خلوت نمیکند مگر نفر سوم آنها شیطان است.

ای جوانان مسلمان!

از حیله های شیطان بر حذر باشید...

و در آخر به تو ای برادر و ای خواهرمسلمانم!

اگر همسر پاک دامن میخواهی، پس فکر ارتباط با نامحرم را در ذهنت جای نتی، هم رضای الله سبحانه و تعالی را به دست میاوری و هم یک همسر پاک مثل خودت نصیبت میشود.

قسم به الله سبحانه و تعالی که خودم تجربه کردم و برت دروغ نمیگویم .یعنی خود را پاک نگهدار تا همسر پاکدامن نصیبت شود در غیر آن قسمیکه هستی همسر نصیبت خواهد شد، این عدالت الهی است.

برای ثواب این پست را با دوستان تان شریک سازید، چون بسیاری از دختران در این راه تباه شدند!

«رسول الله علیه الصلاة والسلام ـ میفرمایند:

**«هیچ مردی نیست که با زن (نامحرمی) خلوت کند مگر اینکه شیطان شخص سوم آنها خواهد بود»**. (رواه احمد)

مراقب باشیم

گاهی شیطان دست درازمی کند

حسن زوی

# د ټولنیزو اقداماتو په لړکې

# د سعودي بل دردونکی اقدام

دسعودي په اره نوی خبر دادی چې دسعودي په خورا مهم سترساحلي ښارجده کې نایټ کلب خلاص شویدی چې دې کار نه یواځې دسعودي بلکې دټولې نړۍ مسلمانان سخت خفه کړي اوپه راتلونکي کې دداسې نورروناوړو اقداماتوپه اړه ډېر اندېښمن دي.

په ۲۰۱۵م کال کې دپاچا عبدالله دمړینې نه پس واک ته دسلمان رسېدلوسره سم په سعودي کې ګڼ داسې بدلونونه رامنځته شول چې دسعودي په مذهبي ټولنې کې یې تمه نه کېدله اوورته په بده سترګه کتل کېدل خوپر واک دشهزاده محمد بن سلمان دمسلط کېدونه پس امریکااونور لویدیځ ته دسعودي دلازیات ورنېږدې کولو او ورته دخپلې وفادارۍ ښکاره کولوپه موخه محمدبن سلمان په هېواد کې دټولنیزو اصلاحاتو درامنځته کولو په نوم دسعودي مذهبي ټولنه ددینې قیودونه دازادولو او په تمامو معنو لبرال کولو پرلورپه ډېرې تېزۍ روانه کړه او ددې لپاره یې ګڼ ناوړه اقدامات وکړل .

اوس دسعودي کلتور کې په ډېرې تېزۍ یوپه بل پسې بدلونونه رامنځته کېږي او په سعودي ټولنه کې دغربي کلتور اغېزې په ډېرې پراخه پیمانه خپرېږي .

دلویدیځ په لمسون لا ډېر دمخه دسعودي مېرمنو د موټر چلولو داجازې اخستلو مسلسله غوښتنه کوله خو د ټولنیزو اسلامي احکامو په اړه چې تر ډېره حده نظام محتاط و او د بې سترۍ اوبې حیایۍ دلارو مخنیوی کېدلونو ددولت له لورې مېرمنو ته دداسې ازادۍ اجازه نه ورکول کېدله ؛خو محمد بن سلمان چې دسعودي مېرمنوته دلویدیځ په څېر دهرډول ازادۍ ورکولو هوډ کړیدی نودهمدې ازادۍ ورکولوپه لړکې یې ورته په سرکې دموټر چلولو اجازه ورکړه ؛ ترڅنګ یې په انتخاباتو کې درایو اچونې او دشوراګانولپاره دځان کاندیدولو اجازه هم ورکړه ؛ مېرمنو ته په دولتي او شخصي کار ځایونو کې فعاله ونډه ورکړل شوه .

اوچې یوځل دآزادۍ دروازه خلاصه شوه نو لوبغالو، پارکونو؛ ننداریتونونو اوسینماګانو ته دتللو اودپردو سړو سره یوځای دکېناستلو ترحده خبره ورسېده . په ټولوښارونوکې د۳۵ کلونو راهیسې دبندو سینماګانو دخلاصولو او پکې د غربي او عربي فلمونو دښودلو اجازه ورکړای شوی .

د سعودي دکلتور وزارت او د اي.ایم.ایس انټرټېنمنټ نومې امریکایي شرکت ترمنځ یو تړون رامنځته شویدی چې له مخې به یې نوموړی شرکت په راتلونکو ۱۰ کلونو کې په سعودي کې ۳۵۰ دنړۍ ترټولو عصري سینماګانې جوړوي.

په سینماګانو کنسرټونو او نورو تفریحي ځایونوکې دمیرمنو اوسړو مخلوط کېناستلو اجازه هم دولت ورکړیده .

په ماضي کې دسعودي دمېرمنو په هکله دنمایش ګرې په توګه ډګرته دراوتلو تصور هم نه شو کېدای خو دتېر کال

راهیسي دسعودي مېرمنې دمختلفوشرکتونو لپاره نمایش کـوي او دي ډگر ته اوس دمېرمنو دراتللویو نه تم کېـدونکی تسلسـل روان دی .

تېر کال چې په ړومبي ځل مېرمنوته دسروسره په گـډه د تلویزوني پروگرامونو دجوړولو اوخپرولو اجازه ورکړل شوه نو دتیاتر سعودۍ کارکونکې هم رامخې ته شوې اوعملاً یـې کـار پیل کړ.

د محمدبن سلمان له لورې دروان ۲۰۱۹م کـال پـه اپریـل کې دقوم ثمودپه هغه ځای کې چې پکې پدې قوم عذاب راغلی و دکنسرت جوړېدل بیا په اوسنوشویو اقداماتو کـې ډېرخطرنـاک اقدام و.

کابو ۵ زره کاله وړاندې د ثمود په نوم دخپـل وخـت یـو خورا ځواکمن قوم و چې په حجر نومي سیمې کې مېشت و؛ دې سیمې ته مدائن صالح هم ویل کېږي ؛ دا قوم دومـره ځـواکمن وو چې غرونه به یې تراشل او کورونـه بـه یـې پکـې جـوړول؛ ددوۍ دا ۱۳۱ کورونه اوددې کورونو دروازې په خپـل اصـل او سالم شکل اوس هم پاتې دي ؛دا ودانۍ دعالم په عجائبـاتو کـې ډېره ستره اعجوبه گڼل کېږي چې له امله یې ۱۰ کاله وړانـدې په ۲۰۰۸م کال کې یونیسکوټول مدائن صـالح دنړیوالـو اثـارو برخه وگرځوله.

دحضرت صالح علیه السلام نه د سخت بغاوت اوسرکشـی له امله داقوم سختې زلزلې اوخورا هیبتناکې چغې تباه او سیمه او ودانۍ یې دقیامت دورځې پورې راتلونکو انسانانو ته عـبرت گرځولی و.

دتبوک غزا کې رسول الله صلی اللـه علیـه وسـلم د خپلـو اصحابو سره یو ځای پدې ځـای تېرېـدلو نـو صـحابه کرامـو رضوان الله علیهم اجمعـین تـه یـې پـه تېـزۍ ددې ځـای نـه دتېرېدلو حکم وکړ او ویې فرمایل چې دعـذاب وهـلي قـوم لـه سیمې په ژړا تېر شئ!او که ژړا نه درځي نو دژړا کونکو په څېر خپل ځانونه جوړ کړئ!

رسول الله صلی الله علیه وسلم پخپله هم دې ځای تـه پـه رارسېدلو خپله اوښه تېـزه کـړې وه او فرمـایلي و چـې ددوۍ کورونو ته مه وردننه کېږئ! داسې نه چې تاسـو بانـدې عـذاب راشي.

خو ډېره دتاسف نه ډکه خـبره دا ده چـې څـو میاشـتې دمخه داځای د سعودي عربستان ولي عهد محمـد بـن سـلمان دنړۍ د ترټولواوړد کنسرت لپاره منتخب کړ.

د (مهرجان شـتاء طنطـوره )پـه نـوم دا کنسرـټ دروان ۲۰۱۹م کال ددسمبر په ۲۰ مـې نېټـې پیـل او ۸ اوونـۍ یـانې دفـــرورۍ تـــر۷ نېټـــې یـــې دوام وکـــړ چـــې دســـعودي، امریکا،اروپا،مصر او لبنان گڼـو هېوادونـو عـام او ۸ دنړیـوال شهرت لرونکو سندرغاړوپکې گډون وکړ.

دموسیقۍ ددومـره اوږد پروگـرام لپـاره ددې ځـای پـه انتخاب ټول هېواد سخت هیجان کـې وو او دقـرآن او احـادیثو دلاربښوونو پورې دخندا کولو له امله په هېـواد کـې نـه یـواځې مذهبي طبقه بلکې دسعودي عام اوسېدونکي هم ډېر اضطراب ښکار وو او ویل یې چې دا اقدام دالله تعالی عـذاب تـه دعـوت ورکول دي.

دسعودي اوسېدونکو دټولنیزو اړیکو لپاره جـوړو شـویو پاڼو کې ددې کنسرت په باره کې ښه په زغرده ویـل چـې دا پـه سعودي کې دبې حیایۍ او فحاشۍ دخپرولو لپاره دتیار شـوي پلان ډېره مهمه برخه ده.

اوس خولا بهرنو هېوادونو ته د سفیرانو په توگه دسعودي مېرمنولېږل هـم پیـل شـول چـې داد اصـلاحاتوپه نـوم دپیـل شویواقداماتو په لړ کې یو خورا خطرنـاک او دردونکـی اقـدام دی.

محمدبن سلمان څومیاشتې وړاندې خپل ورور خالـد بـن سلمان چې په امریکا کې دسعودي عربستان سفیر و دسـفارت نه یې ددفاع وزارت معینیت ته راوست او پرځای یې ریـما بنـت بندربن سلطان په واشنگټن کې دسعودي سفیره مقرره کړه.

دسعودي په ۸۷ کلن تاریخ کې شـهزادګۍ ریـما لـومړۍ سعودۍ مېرمن ده چې په کوم هېواد کې دسفارت لپاره ګومارل کېږي .

شهزادګۍ ریـما پـه ۱۹۷۵ م کـال کـې پـه ریـاض کـې زېږېدلې ده اولوړې زدکړې یې په جارج واشنګټن پوهنتون کـې ترسره کړیدي ؛پلار یې بندربن سلطان بن عبدالعزیز دی او مور یې دشاه فیصل بن عبدالعزیز لور هیفـاده نـو ځکـه د شـاهي کورنۍ ترټولو زیاته مؤثره مېرمن ګڼل کېږي .

او ددې لپاره چې شهرت ورکړل شي او دسعودي دمشرانو په منځ کې یې مقام ښه لوړ کړای شي ترڅو په راتلـونکي کـې دلوړې چوکۍ پر ورکولوڅوک اعتراض ونکړي نو دهمدې هدف دحصول لپاره دامریکا فوربس نومي مجلې هغـه پـه ۲۰۱۴ م کال کې دعربي نړۍ ترټولو مؤثره اونامتو مېرمن ګڼلې وه.

۲ کلونه یې دمحمدبن سلمان سره دځانګړې مشـاورې پـه صفت دنده ترسره کړیده ؛دسعودي په کاروباري بډایو مېرمنـو کې یې نـوم ترټولـو ورانـدې دی؛ریـما دجواهرو،عطرونـو او پوستکودمشهور شرکت،،ریمیه،، مالکه هم ده.

دچارو پوهان وایي چې پردې دندې دریـما دتقـرر اصـل لامل دادی چې دریما پلار بندربن سلطان پـه امریکـا کـې ۲۲ کلونه دسعودي دسفیر په توګه دنده ترسره کړیـده چـې دا پـه امریکا کې دسعودي عربستان دکـوم سـفیر دسـفارت ترټولـو اوږده موده ده ؛ پدې مـوده کـې بنـدربن سـلطان دامریکـایې چارواکو او جاسوسو شبکو سره خپل روابط ډېر قوي کـړي وو ؛ شنونکي وایي چې په ټولې شاهي کـورنۍ کـې لـه ده پورتـه دامریکا بل غټ لاسپوڅی نه و، تردې چې په شاهي کورنۍ کـې هغه خپلو مخالفینو بندر بش ګانه.

بندر په ۲۰۱۲ م کـې دسـعودي عربسـتان داسـتخباراتو مشر شو چـې تـر ۲۰۱۴ م پـورې ددې اداري مشرـو او پـدې مودې کې یې دامریکا داستخباراتي ادارو سره روابط نـور هـم قوي شول.

نو دبندربن سلطان دګوښه کېدونه پوره ۱۴ کاله پس یـې چې یې لور شهزادګۍ ریما دسفیرې په توګه مقررېږي پوهـان ورته له همدغه شالیده ګوري .

په امریکا کې یې دسفیرې په حیث تقرري له دې امله نـده چې داسې ډېر لوړ استعداد لـري چـې ددومـره لـوړ اسـتعداد لرونکی بل سړی نشته او یا داسې کامیابه دیپلو ماته ده چې بل داسې کامیاب دیپلومات نشته بلکې اصـل لامـل یـې دادی چـې دپلار له لارې یې دامریکایي استخباراتي ادارو سره روابـط دي او دامریکا په غوښتنه دلته سفیره مقرره شوې ترڅـو لـه یـوې خوا دمحمدبن سلمان لـه لـورې دلبرالیـزم پرلـور روان شـوی سعودي عربستان پـدې هکلـه لاپسـې تېـز او دنـورو اسـلامي هېوادونو لپاره نمونه وګرځي او له بلې خوا امریکـا دجاسوسـو شبکو سره تړاو لرونکو خلکو نه د سفیر په جامه کې ټول هغـه کارونه واخستل شي کوم ته چې امریکاارتیا محسوسوي.

اونوی خبر دادی چې دسعودي په خورا مهم سترسـاحلي ښارجده کې نایټ کلب هم خـلاص شـویدی چـې دې کـار نـه یواځې دسعودي بلکې دټولې نړۍ مسلمانان سخت خفـه کـړي اوپـه راتلـونکي کـې د داسـې نورونااوړواقداماتوپـه اړه ډېـر اندېښمن دي ؛ دولتي مشران وایي چې دنایټ کلب په هکلـه یـې چاته اجازه نده ورکړې خو چې کلب شتون لري اوعملاً خـلاص شویدی او یوه ویډیو یې هم خپره شویده نو داجـازې ورکولـو اونه ورکولوخبرې بې معنی اود مسلمان ولس پـه سـترګو کـې دخاورو اچولو اوغولویوه ناکامه هڅـه ده ځکـه چـې هرڅـوک پدې پوهېږي چې په سعودي غوندې هېواد کې ډېـرې کـوچنۍ خبرې هم ددولت نه پټې نه پاتې کېږي نو دومره غـټ کـار بـه څنګه پټ اوپاتې شي اوڅوک به دومره لوی جرأت وکړي ؟

دغـرب دخوشـالولوپه موخـه دکورونـو نـه دمېرمنـو دراویستلو او دلویدیځ په څېرې دټولوقیودونـه دازادولـو؛ پـه هېوادکې دفحاشۍ اوغربي کلتورخپرولوترڅنګ دلته یو پـه بـل پسې داسلام دښمنۍ نـورګڼ اقـدامات هـم روان دي چـې پـه خیریـه مؤسسـاتوبندیزونه پکـې دیـادولو وړ دي. دوه کالـه



وړاندې امریکا خپل یو دولتي هیئت تشکیل او دسعودي دخیر یه مؤسسو او اشخاصو په اړه یې ورته دڅېړنو او معلوماتو راجمع کولو دنده ورکړه؛دامریکا دې هیئت دسعودي د خیریه ادارو او سونو اشخاصو په اړه دمعلوماتو راټولولو نه پس سپارښتنه کړې وه چې خیریه سترې مؤسسې دې بندې شي اوپه هېوادکې دننه دې دیو شمېر سترو شرکتونو او اشخاصو په زکاتونو او خیراتونو بندیزولګول شي ځکه چې ددوئ دخیر یه مرستو نه سخت دریځو ته ګټې رسېږي نو باید بندیز پرې ولګول شي او دسعودي زکات او نورې خیراتي روپۍ دې دامریکا پوهنتونونو ،نورو تعلیمي ادارو او سائنسي تحقیقاتي مرکزونو ته وقف شي.

محمدبن سلمان پدې اړه هم دامریکا غوښتني ته لبیک وویلو ؛ څه موده وړاندې یې چې داحتساب اداره جوړه کړه نو هدف یې دهمدې خیریه ادارو او افرادو پرضد اقدام و خو پلمه یې داجوړه کړه چې دا اداره به د بدایو خلکو او دولتي لوړ پوړو چارواکو په اړه څېړنې کوي.

نوپه همدې لړ کې دتېرو څه کم دوه کلونو راهیسې دسعودي د ۷۰ خیریه مؤسسو په فعالیت ددولت له لورې بندیز لګېدلی دی ؛ اهل خیر او ادارې په بهر نړۍ کې دجوماتونو له کفالت نه منع شوي او دسعودي بدای په لسګونو تنان دپوښتنو او تحقیقاتو په نوم نیول شویدي .

تېر کال چې دمحمد بن سلمان په حکم دشهزاده ولید بن طلال په شمول ګڼ شمېر شهزادګان او لوی سوداګر ونیول شول نو اوس معلومه شوه چې تر شا یې دامریکا همدافشار و ځکه چې دوئ نېږدې ټول داسې خلک وو چې په خیریه کارونو کې به یې له دې وړاندې لویه برخه وه. پدې لړ کې اوس مهال ولې عهد دسعودي په اهل خیر کې ترټولو لوی او مشهور شخص سلیمان الراجحي ته لاس وراوږد کړیدی.

دسعودي داحتساب په نوم جوړې شوې ادارې چې دولیدبن طلال په شمول دشهزادګانو نه په میلیاردونو ریال واخستل دسلیمان الراجحي نه یې هم د ۱۰ ملیارده ریال غوښتنه کړیده او د نه ورکولو په صورت کې ورته زندان ته دځان چمتو ساتلو ګواښ کړیدی.

ضعیف العمر سلیمان الراجحي ته دا ګواښ او ورنه دا غوښتنه په داسې حال کې شوې چې له دې وړاندې دهغه ځوی؛ دالراجحي شرکت منیجر ، په مکې مکرمې کې دهغه له لورې دجوړ شوي ستر مسجد امام هم دولت نیولی او دمنیجر او دهغه دځوی نه داحتساب په ادارې کې دالراجحي شرکت دعوایدو په اړه تحقیقات ترسره شوي و او دجومات دامام نه دسلیمان الراجحي دپټو صدقاتو په اړه معلومات ترلاسه شوي وو . نو دا د ډېر افسوس او درد ځای دی چې دسعودي عربستان ولي عهد محمدبن سلمان نه دخپل هېواد دژمنو مسلمانانو خفګان ته ګوري ؛ نه دعالم اسلام زړه بداوي ته ګوري او نه هم خپلو علیا ملي منافعو ته ګوري بلکې یوائې دامریکا خوشالول غواړي او پدې لار کې دهیڅ شي پروا نه ساتي.

خو دسعودعربستان حاکمان اوپه ځانګړي ډول محمدبن سلمان باید پدې پوه شي چې دخپل هېواد اوټولې نړۍ په مسلمانانوکې ښه شهرت اومحبوبیت ددوئ دواک دبقا لپاره اصل اوبنسټیز حیثیت لري . دامریکا مثال دشیطان نه کم ندی له خپلو لاسپوڅو کارونه اخلي شرموي یې هم او په نیمې لار کې یې پرېږدي هم.

دامریکا تاریخ دادی چې دخپلو لاسپوڅو نه کار هم اخلي اوښه ډېر یې بدناموي هم او دا ددې لپاره چې کله یې بیا پرضد امریکا اقدام کوي لرې کېدل او د ادارې ختمېدل یې اسان وي ځکه چې په خپل ولس کې بدنام وي نو هیڅ خواخوږي یې نه وي چې ورنه دفاع وکړي.




# د شهید ملا عبدالباسط( سراج آغا) تقبله الله لنډ ژوند لیک

جهاد الله تعالی ج د خپل دین د سرلوړی او د مسلمانو ملتونو دلوړو گټو او ارزښتونو د خونديتابه لپاره فرض کړی، یو مجاهد د دغه فرض په ترسره کولو د الله تعالی د دین د لوړوالي ترڅنګ د خپل بشپړ ملت له برم څخه ننگه کوي، د الله تعالی د دین او د ملت د برم لوړوالي پر لاره کې سرښېندنه د یو مجاهد هغه ویاړ او د زړه غوښتنه، ارزو او شوق دی چې له پیله لا ورته د یوې خوږې مرحلې په توګه تابیا نیسي۔) اِمَّانَصْرٌوَّاِمَّاشَهَادَةٌ (یا فتحه یا شهادت، خو دغه مرحله پرچا زر راځي او چاته له ځنډ سره، داسي نه چې د الله تعالی د لاري یو مجاهد به خپل سر دریغوي.

په تېره یوه نیمه لسیزه کې د طالبانو غورځنګ نږدې نیمایي برخه له دې مرحلې تېره شوې، له دوی څخه د یو سرسپارلي مجاهد شهید ملا عبدالباسط) سراج (اغا تقبله الله پر جهادي ژوند لنډ غربېرو چې د الله تعالی د دین او د ملت د برم د لوړوالي په لاره کې یې له اوږد انتظار وروسته د شهادت ویاړ هم ترلاسه کړی.

زوکړه او زدکړې :شهید ملا عبدالباسط) سراج (آغا تقبله الله چې په سیمه او گاونډ کې په اغاصاحب سره یادېده د مرحوم شیخ المشائخ پیر طریقت رهبرشریعت حضرت مولانا مرحوم عبدالقدوس آغاصاحب رحمه الله )چې د وازیخوا د آغاصاحب په نوم مشهور و (زوی د مرحوم جمعه رحمه الله)چې په بزرگ ملاصاحب مشهور و (لمسی دی او د ۱۳۸۰ سپوږمیز کال محرم الحرام میاشتي پر۳۰ مه نېټه یې د پکتیکا ولایت د وازیخوا ولسوالۍ د برج کلي په یوه دینداره، روحاني او مجاهده کورنۍ کې د دې فاني نړۍ د ژوند باب پرانیست.

دا چې اغاصاحب تقبله الله په یوه ستره علمي او مذهبي کورنۍ کې ترعرع کړې د لومړنیو زدکړو پیل یې له هماغه ماشومانه خاپوړو څخه شوی، د لوړو زدکړو تر لویي دورې پوري ټولې دیني زدکړې په کور دننه له خپل والد صاحب رحمه الله څخه کړې، او ورسره یې په تصوف او طریقت کې هم له هغه څخه لاس نېوی کړی، نو ځکه د هغه علمي او اصلاحي ژوند ډېر ښلابېل پړاونه او مختلفو مدرسو او استادانو ته د سفرونو اوږد داستان نه درلود، په افغانستان د سرو لښکرو یرغل یې د زدکړو مرحله په کور دننه ور نېمگړې کړه، خو بیاهم چې هغه د ښې وړتیا او ادراک څښتن و د یوې منځنۍ سویې عالم په حیث پېژندل کېده.

د جهاد پیل یې :دا چې شهید) سراج (اغاصاحب تقبله الله لا ځلمکی طالب او صوفي و چې د شوروي اتحاد پر وړاندې د جهاد میدان ته یې دانگلي او پکې د فرد په حیث یې فعاله برخه أخیستې، هغه د دوو سترو جهادونو لوبغاړی دی، جهادي ژوند او هلي ځلي یې اوږده مخینه لري او د ژوند درې برخي یې جوړوي، خو موږ ډېر وړاندې نه ځو...

په ۱۴۱۵ سپوږمیز کال کله چې د عالیقدر امیرالمؤمنین مرحوم ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله په سپېڅلي عزم د طالبانو اسلامي غورځنګ را وټوکېد او اسلامي امارت تأسیس شو، شهید آغا صاحب تقبله الله د هېواد جنوب ختیځ کې د پکتیکا ولایت دریو لیري پرتو)وازیخو، تروې او ورمې (سرحدي ولسوالیو د قومي او جهادي مشرانو، دیني عالمانو او مجاهدو طالبانو لخواه په یوه خوله د واحد جهادي مشر په توگه وټاکه.

له دې کابو یو کال وروسته د ۱۴۱۶ سپوږمیز کال محرم میاشتي پر۲۴مه شهید آغا صاحب تقبله الله کندهار ولایت ته لاړ او په لومړي ځل یې له مرحوم مشر ملاصاحب رحمه الله

تعالی سره لېده کاته وکړل، مرحوم ملاصاحب رحمه الله د دریو ولسوالیو د مجاهدینو د عمومي مسئولیت ترڅنګ ورته د سیمي د مجاهدینو د یوې پرتمیني ډلګۍ مشري هم رسماً ور له غاړي کړه او ورته یې د جهادي فعالیتونو د ښه مدېریت سپارښتنه او له خپل لوري د مرستي ډاډ ور کړ.

له هغه ځایه له راتلو سره سم شهید آغا صاحب تقبله الله جهادي فعالیتونه پیل کړل، د پکتیکا ولایت د محاذ مسئول شهید ملا عبدالقهار ته یې د خپلو ملګرو یو تشکیل ور ولېږه، چې د غزني او میدان ښار په فتحو کې یې بارز رول درلود، دوهم تشکیل چې اغاصاحب تقبله الله هم پکې و د پکتیکا ولایت اورګون ولسوالۍ د خالد قرارګاه ته لاړ، د هغې له فتحې وروسته یې د تروې ولسوالۍ نوموتی مجاهد شهید ملا علم خان روحاني تقبله الله ته د یاد تشکیل مشري وسپارله او د لوګر ولایت د ازرې ولسوالۍ او د جلا ل آباد ښار د فتحې په عملیاتو کې یې ګډون وکړ.

همدارنګه یې د شهید ملا امان الله صابر تقبله الله په مشري د کابل ولایت چهار آسیاب ولسوالۍ ته تشکیل ولېږه چې د هغه ځای له فتوحاتو وروسته یې د کابل په ستره فتحه کې هم ګډون درلود، له دې پرته اغاصاحب تقبله الله د هغه مهال ترقومانده لاندې برجسته ملګرو په مشرۍ بېلابېلو ولایتونو لکه بادغیس او مزارشریف ته د شهید صابر تقبله الله په مشري، تخار ته د شهید ملا عبیدالله عابد او شهید ملاعلم خان روحاني تقبلهما الله په مشري، پروان ته د شهید ملا خدایداد حقاني تقبله الله په مشري، بامیان ته د ملا نعمت الله عابد او کندوز ته د ملا بسم الله بهار او ملا بهاؤالحق هاشمي حفظهم الله په مشري تشکیلونه لېږلي و چې په ځینو کې به شهید آغاصاحب تقبله الله هم ګډون درلود او د تشکیل مشري یې نورو ملګرو ته سپارله، د بامیانو او کندوز په فتحو کې هم د شهید اغاصاحب تقبله الله تشکیلونو پراخه برخه لرله او د بامیانو د بت شکنۍ په مراسمو کې یې هم حضور درلود، د اسلامي امارت د سقوط په مهال په بامیانو کې د ملانعمت الله عابد حفظه الله په مشري د اغاصاحب تقبله الله ملګري د امریکایانو تر بمبار لاندې راغلل خو تلفات یې نه درلودل.

له هغه وروسته کله چې په هېواد کې د اسلامي امارت حضور پراخ او د ټوپك او پاټك سالارۍ ټغر له زیاتره سیمو ټول شو شهید آغاصاحب تقبله الله د نورو مسئولیتونو ترڅنګ دري کاله شاوخوا د پکتیکا مرکز ښرنه کې د پټني د غونډ د مشر په توګه دنده لرله، یاد غونډ څلور کنډکونه درلودل چې د ارګون کنډك مشر ـ ملاعبدالقدوس مخدوم، د خیرکوټ کنډك مشر نظرمحمد وفادار، د وازیخوا د کنډك مشر شهید ملاعبیدالله عابد تقبله الله او د تروې کنډك مشر ـ ملا عبدالحمید درویش و، او د همدې کنډك له خوا د تروې ولسوالۍ د سرحدي لواء چاري هم په مخ وړل کېدلې.

دا مهال د شهید اغاصاحب تقبله الله ښې وړتیا او د غښتلي انسجام ملکې ته پر کتو د اسلامي امارت د مشرتابه له لوري د خوست ولایت د سرحدي لواء مسئولیت هم ور له غاړي شو، خو د پټني په غونډ او د هغه اړوند کنډکونو کې د آغاصاحب تقبله الله د زیاتې بوختیا له امله هغه د مشرتابه رحمه الله په اجازه شهید مولوي احمدشاه ملنګیار تقبله الله یادې لواء ته د خپل نائب په توګه ور وپېژاند، پر دې علاوه اغاصاحب تقبله الله په کابل کې د سیمه ایزو مجاهدینو د نمائندګۍ مشري هم په غاړه لرله چې مقر یې لومړۍ د کابل په قرغې، بیا وزیر اکبرخان څلورلاري او د پټني د غونډ په مهال په درېیم ریاست) ریاست سې (کې و، له وفادار علاوه یاد ټول مشران هغه مهال د اغاصاحب تقبله الله تر قومانده لاندې و، چې ځینې یې شهیدان شوي او ځیني نور یې اوس هم غښتلي جنګي قوماندانان دي.

د صلیبي یرغل په وړاندې :دشر او فساد په وړاندې مبارزه لاهم روانه وه، شهید) سراج (اغاصاحب تقبله الله لا دمه او آرام نه و کړی چې پر ګران هیواد افغانستان مو صلیبي تاړاك یرغل وکړ، اسلامي امارت عقب نشیني وکړه، د نور هېواد په څېر د پکتیکا ولایت وازیخوا، تروې او ورمبۍ له لیري پرتو ولسوالیو هم د شهید اغاصاحب تقبله الله په مشرۍ مجاهدین له سوله ایز پلان سره سم و وتل، اشغالګرو د هغه مهال خپلو ګوډاګیانو په ملتیا په ډېرو ولسوالیو کې مرکزونه فعال کړل، خو د یادو دریو ولسوالیو مرکزونه په لومړیو کې داخلي ګوډاګیانو سمبالول.

ورسره جوخت او له ځنډ پرته اغاصاحب تقبله الله هم د دې ولسوالیو مجاهد طالبان بیا له سره منظم کړل او پر جهادي فعالیت یې لاس پوري کړ، دا هغه مهال و چې شرائط

ډېر سخت، امکانات د نشت برابر او د ښمن مو له مادي اړخه ډېر لوی اوځواکمن و، له همدې أمله یې پر ورانديې مجاهدینو په لومړي سر کې یواځې چریك او غلچکي بریدونه کول چې تقریباً د ولایت په سطحه د دې چارې پیل اغاصاحب او شهید ملا رازمحمد خنجري تقبلهما الله کړی دی.

ډېر وخت نه و وتلی چې مجاهدین له دغې مرحلې تېر شول او یرغلیز بریدونه یې پیل کړل، په۱۴۲۴سپوږمیز کال شهید آغاصاحب تقبله الله د وړممې ولسوالۍ او وروسته د تروې ولسوالۍ فتحه کړه، په۱۴۲۵سپوږمیز کال یې د شهید ملا رازمحمد خنجري تقبله الله په ملتیا دوازیخوا ولسوالۍ او ورپسې د خوشامند ولسوالۍ فتحه کړه، په۱۴۲۷سپوږمیز کال د گومل ولسوالۍ او ورځېرمه د بندر قرارگاه په فتحه کې هم د شهید آغاصاحب تقبله الله ملگرو پراخه ونډه لرله.

له څه مودې وروسته چې په لومړي ځل اشغالگر د وازیخوا ولسوالۍ کې میشت شول، شهید آغاصاحب تقبله الله هیواد او پلرنی ټاټوبی پرېښود، هجرت یې وکړ او خپلو جهادي هلوځلو ته یې دوام ورکړ، دا چې د وازیخوا ولسوالۍ د تروې او وړممې ولسوالیو لپاره ستراتېژیك حیثیت لري، له بل لوري د اشغالگرو توجه ورته زیاته او حضور هم ورکې پراخ و، شهید اغاصاحب تقبله الله پرې د بریالي جنگي تکتیك له مخې وازیخوا ته د تروې او وړممې ولسوالیو لارې وتړلې، کلنۍ به د اشغالگرو امریکایانو تر پنځلس زیات ټانگونه او نقلي وسائط پر ماینونو پورته کېدل او یا به هم په درنو وسلو وویشتل شول چې اشغالگر دښمن ته یې خورا زیات تلفات اړول.

د تلفاتو پر لېدو دلته نوره مېشتدېدنه د اشغالگر دښمن له زغمه ووته، په ۲۰۱۱زېږدیز کال یې د وازیخوا له ستراتېژیکي ولسوالۍ پښې سپکې کړې او هغه یې خپلو گوډاگیانو ته پرېښودله، شهید آغا صاحب تقبله الله خپله مبارزه جاري ساتله او د اشغالگرو د پاټې شونو) گوډاگیانو (په ورانديې په نره ودرېده، د هغوی له منځه وړلو لپاره یې ډول ډول گڼ چریك او یرغلیز بریدو نه پلان او بیا تطبیق کړل چې گوډاگیانو ته د اشغالگرو په نه شتون کې ترپخوا لا پر لویه سرخوږي واوښت، له همدې امله نوموړی دښمن ته زیات مطلوب او د پر اصطلاح ملي امنیت په لیست کې سر فهرست و گرځېد ترڅو یایې ژوندی ونیسي او یایې هم له منځه یوسي.

وروستۍ دندې یې :شهید) سراج (اغاصاحب تقبله الله لکه چې ومو ویل د غربي ښکېلاك په لومړیو وختو کې یې د پخوا پشان بیا هم د وازیخوا، تروې او وړممې ولسوالیو د مجاهدینو د ټولیز أمیر په حیث دنده لرله، وروسته چې امکانات څه پراخه، شرائط نسبتاً ښه شول، د وخت غوښتنو او مصلحتونو تغیر وموند، په ولس کې د جهاد ولوله یوځل بیا تانده او گړندۍ شوه، ځیني برجسته ملگرو یې وخت پر وخت د سیمه ایزو مجاهدینو رسمي او نارسمي ډلگۍ جوړي کړې چې تر اوسه لا په پوره همغږۍ خپلو جهادي چارو ته دوام ور کوي، د شهید اغاصاحب تقبله الله په ډلگۍ کې بیا هم د یادو دریو ولسوالیو له بېلابېلو قومونو سره تړاو لرونکي مجاهدین برخوال دي.

په۱۴۳۰سپوږمیز کال چې د مجاهدینو او جهادي چارو نظم او ډسپلین د ښه والي په پار په لومړي ځل د اسلامي امارت په تشکیلاتو کې د مسئولینو د تعیین لړۍ پیل شوه، شهید اغاصاحب تقبله الله د وازیخوا ولسوالۍ د نظامي مسئول په حیث معرفي شو، په۱۴۳۱سپوږمیزکال د یادي ولسوالۍ په نمائندگي د نظامي کمیسیون غړیتوب ورله غاړې شو، ۱۴۳۸ او ۱۴۳۹سپوږمیز کلونه یې د ملکي مسئول دنده درلوده او سږ۱۴۴۰سپوږمیز کال د نظامي کمیسیون غړی وټاکل شو.

د شهید اغاصاحب تقبله الله د یادو دندو پر مهال د هغه ملگرو په گڼو عملیاتو کې برخه أخیستې لکه دوه ځله په جلال اباد کې د داعشیانو په وړاندې خط ته تللې سریه کې، پر۱۴۳۶سپوږمیز کال د گواشتې فتحه کې، د ۱۴۳۷ صفرالمظفر۱۳-۱۴مه د مهمان کلا او زېړي کلیو د پوستو فتحو کې، ورپسې د ذوالحجې۱۱مه د اومنې ولسوالۍ لومړی ځل فتحه کې، د۱۴۳۸ ذوالحجې۳مه د گومل ولسوالۍ فتحه کې او د۱۴۴۰سپوږمیز کال محرم۸مه د سروانديې سیمي د قرارگاه فتحه او ورپسې د صفرالمظفر پر۲مه د خوشامند ولسوالۍ فتحه کې گډون د یادوني وړ دي، دا چې د خوشامند جهادي مسئول د اغاصاحب تقبله الله وراره ملاجلال الدین سعادت اغا و د ولسوالۍ په فتحه کې کلیدي رول هم د

هغه و، او د جمجمې سیمه کې د یو ځواکمن کمین مشري هم د اغاصاحب تقبله الله ملګرو کوله.

شخصیت یې :لکه چې و مو ویل شهید( سراج )اغاصاحب تقبله الله د یوې درنې علمي، روحاني او جهادي کورنۍ غړی او د دریو ولسوالیو د مجاهدینو د سر سړی و، هغه ټول خویونه او مهارتونه یې په وینه کې ګډ او په خټه کې اغښل شوي و چې یو د لوړې سویې بریالی جهادي قوماندان او لاربنود یې باید ولري، که د هغه شخصیت په ناپیلو کېسو کې واخلو نو خبره به بېخي اوږده شي، له همدې وجې یې په هغو ځانګړو خویونو او صفاتو کې را اخلو چې د هغه د هراړخیز ژوند ناپیلې کېسې ترې سرچینه اخلي.

شهید اغاصاحب تقبله الله یو درونـد دیني عـالم او مجاهد او د لوړو أخلاقو، جهادي فکر، تقوا، تدبر، متانت، نرم مزاج، ټینګ هوډ څښتن، یو متواضع، خواخوږی او زړه سواند، د وربنې ټندې، مهاب او جذاب هیکل او ځیري لرونکی، ارام، خوښ تبه او خوږمن مشر و، لوربینه او سخاوت، مېلمه پالنه او امانت، وقار او درنښت، حیاء اوعفت یې هغه ځانګړتیاوې وې چې د هغو پر مټ یې د دریو ولسوالیو له بېلابېلو قومونو سره تړاو لرونکي مجاهدین پر ځان راټول کړي او په سیمه ایزه سطحه مجاهدینو في الجمله د یواځیني جهادي مشر په حیث پېژاند.

شهید اغاصاحب تقبله الله د فضل او علم خاوندانو، روحانیونو، جهادي مشرانو، درنو قومي مخورو ته، همدارنګه د اسلامي امارت لائحو، د مشرتابه لاربښوونو او فرمانونو ته یې زیات احترام او التزام درلود، هغه نه یواځې دا چې د کوم شرعي منکر او لائحوي تخلف تمه ترې نه کېدله، بلکې له نورو یې هم په هیڅ صورت کې نشوای زغملای، پر ناروا کار به زیات خفه کېده او تل به د هغه د محوه کولو په هڅه کې و، بې دیانته خلك یې په خپله ایماني سلیقه پېژندل، هغه د خدای ج ورکړې ظرافت په مټ د خبرې له رمزه په هغې باندې تر پایه پوهېده.

خاطرې او د ځیني ملګرو تأثرات :شهید) سراج ( اغاصاحب تقبله الله چې ما د امارت له وخت راسي له نږدې پېژاند، ډېر زړه سواند او شفیق، مینه ناك، بې نفسه، د نرمې تبې او تعامل څښتن شخص و، له ملګرو، ولسي- وګړو او هر بلد او نابلد میلمه سره یې یوشان له خواخوږی، درنښت او عاجزۍ ډك چلند درلود، سره له دې چې لکه ومو ویل د ډېر لوړ شخصیت څښتن و خو بیا هم د هغه ژوند هیڅ آمرانه بڼه نه لرله بلکې د نورو ملګرو ترمنځ به د یو عادي فرد په بڼه راڅرګند او بربښېده، ما په وروستي ځل د تېر۱۴۳۹سپوږمیز کال د لوی أختر په څلورمه ورځ د هغه په کور کې ولید، بېخي ساده ژوند، له مسکا او خوښۍ ډکه څېره، ورینه ټنډه، باوقاره او درونډ چلند یې درلودل.

د فراه ولایت شیخ الحدیث عبدالرزاق مظهري صاحب وایي :زما به په اغاصاحب تقبله الله پسې- پام و ترڅو د سنتو خلاف کوم څه پکې پیدا کړم، خو ترپایه مې پکې څه پیدا نکړل، بلکې لا هغه به چې په چا کې د شریعت خلاف کوم څه ولیدل نو ورته ښود به یې چې په تاکې دا کار شته.

د پکتیکا د قطعې پخوانی مسئول ذبیح الله چې دا مهال د ننګرهار د قطعې مسئول دی د هغه د مېرانې په اړه وایي :د اسلامي امارت له سقوط وروسته د اغاصاحب کور زموږ پناه ځای و، موټر او وسلې مو هغه راته ساتلې، د اغاصاحب تقبله الله کور هغه مهال د ولسوالۍ ختیځ لور ته د هغې په څلور کیلومترۍ کې د اغاصاحب تقبله الله  د اوبو له ماشین سره و او دلته یې یو مسجد او حجره هم جوړه کړې وه چې د شهید ملا روزي خان عاکف تقبله الله بندیان به یې پکې ساتل.

ملا جلال الدین) سعادت (اغا د اغاصاحب تقبله الله وراره او د هغه نږدې ملګری چې یو وخت یې معاوین هم و او په لومړیو وختو کې یواځې هغه له اغاصاحب تقبله الله سره ګرځید، دی وایي :سیمې ته د اشغالګرو د راتلو پر مهال بمبارونه زیات وو، ډېرځلې به د الوتکو له خطر سره د مخ کېدو پر وخت د زیارت په نوم غره ته لاړو الوتکي به زموږ پرسر تاوېدلې، خو اغاصاحب تقبله الله به په هرڅومره سخت حالت کې نورمال و او هیڅ د وارخطایي نښې به پکې نه ښکارېدې، دی وایي ما به وربادې ډېر ټینګار کاوه ترڅو ځای بدل کړو او کور پرېږدو خو هغه به نه یواځې دا چې خپله له کوره نه وتو بلکې لا نورو مجاهدینو ته یې هم کور یو ښه پټنځای و ګرځاوه، د وخت په تېرېدو یې راسره ومنل او د

شپې مهال به له کوره لیږ ازاد لاړو خو زه يې يـوائې ويښ نـه پرېښودم، که زه به ويښ وم هغه به هم ويښ پاتې کېده.

ملا فقير محمد درويش وايي :اغاصاحب د څو انقلابونـو مجاهد و، دا د هغه د اخلاص نښه وه چې د ژوند تـر پايـه يـې مسير بدل نکړ او مجاهد پاتي شو، د هغه که څـه هـم پـه دې وروستيو کې عمـر زيات و خـو بيـا هـم هروخـت پـه جهـادي فعـاليتونو کې دومـره زيـات مصروف و چې سـړی بـه ورتـه حيران شو.

مـلا کمال الـدين شکيب وايـي :د امـارت لـه سـقوط راوروسته شرائط ډېر سخت و، اغاصاحب تقبله الله پـه داسي حال کې چې يوائې ملا جلال الـدين سـعادت اغـا بـه ورسره و جهاد ته يې دوام ور کاوه، وروسته يې لـومړی د زيـارت غـره سره خوله نومي ځای ته هجرت وکړ، په خېمو کې يې واړول او له هغه ځايه به يې عمليات تنظيمول، دا ډېر حساس مهال و او هغه پکي ډېري سختۍ پرځان و گاللې، دی وايـي زمـا يـاد دي چې اغاصاحب په زيارت کې و ملگرو ډېر ټېنگار پـر وکـړ چې نن مالومات راغلی په تاپسي چاپه راځي، امريکايان د وازيخـوا بازار ته راغلي او ستا د ځای پوښتنه يې کړې، نو ته ځـای بـدل کړه، هغه د ملگرو په دې ټينگار ېبرته د بـرج کـلي کې زمـوږ کور ته راغلی او سهار لمرخاته مهال بېرته لـه بـرج کـلي څخـه ووتو.

شکيب وايي :پـه لومړيـو وختـو کې يوځـل امريکايـان د زيارت په لور را ووتل، وسائل کم و پربکړه پر دې وشوه چې د مقاومت توان نه لرو ښه به داوي چې ملگري يو يو شو، نـو ملگرو اغاصاحب تقبله الله ته و ويل چې موږ دا ځای پرېږدو، خو اغاصاحب تقبله الله د کورځنگ ته سنگر ونيو چې يـو ميـل کلاشينکوف او يو راکټ ورسره و، زه يې ناځاپه کورته راغلم او پوښتنه مې وکړه، ماشـومانو هغـه را وښـود، لـه سـتړي مشـې وروسته هغه راته و ويل د امريکايانو گزمه څه شوه؟ ماورتـه و ويل خبر نه يم، هغه ويل فلانکی او فلانکی راغلل او ماته يې له دېځايه د تللو وويل، بس دوی ناځواني وکړه زما لپاره به دا ډېره بده وي چې امريکايان کورتـه راځـي او زه تښـتېدلی يـم، همدلته شهادت ښه دی، شکيب وايي زه ډاډه شوم خو بياهم په سوچ کې وم، اغاصاحب چای را وغوښت او له هغه وروسته ما ترې رخصت وغوښت، اغاصاحب وخندل او ويـې ويـل هـو !

لاړشه !هغه نور خپله لاړل تاته زه وايم چې لاړشه بل وخت بـه په کـار راشـې، دی وايـي زه تـر اوسـه پـه تعجـب کـې يـم چې دومره لوړ شخص او له دښمن سره يې دومره بې پروايي؟!!

د اغاصاحب تقبلـه اللـه زوی مسرور درمـل د هغـه د خاکسارۍ په اړه وايي :له هغه مي اورېدلي و چې يـو وخـت د پکتيکـا ولايـت نمائنـده د ملگـرو د اختر د کـاليو لپـاره ور وغوښـتلم زه هـم د خـره پـه گـاډي کـې ورغلـم، لـه نومـوړي نمائنده سره يو بل مشر هم و) د هغه نوم يې ونه ښـود(هغـه و ويل :موږ ملگرو ته په انـدازه رختونـه ور کـوو، خـو سـتا لـه خاکسارۍ څخه زه ډېر اغېزمن شوم، نو ته چې څـومره وړې يو يې سه.

درمل دا هم وايي چې تېرکال هغـه مهـال چې اغاصـاحب تقبله الله ملکي مسئول و پـه دفتـر کـې ورسره وم، هغـه بـه د عذر په شتون کې هم له خپلي دندي څخه نه پاتي کېده، موږ به ورتـه ويـل دفتـر يـوه نـه او بلـه ورځ خلاصـوه ډېـر سـتړی کېږي، خو هغه دا نه خوښول چې خلك يـوه ورځ ورتـه انتظـار وکړي، دی وايي د کار رسمي وخت د ورځي تـر دولـس نيمـو بجو و، خو که چابه د خپل نوبت ډېر انتظار کړی و اغاصـاحب به تر هغه ارام نه کاو چې د هغه کار به يې نه و خلاص کړی.

شکيب وايي : اغاصاحب تقبله الله دومره خاکساره و چې عامو خلکو به د دې هيڅ فکر نه کاوه چې هغه يو طالب مشر دی، دی وايي د کارېزك په خطرناکه سيمه کې د تگ په مهال په يو ډرائور وربرابر شوو چې موټر يې خراب و، هغه ورته د حاجي صاحب په نوم خطاب وکړ او زياتـه يـې کـړه چې مـوټر مي پنچر دی، اغاصاحب هم له موترسائکله ورته راکوز شو او موټر باندې ور لگياشو، زموږ نـور ملگـري چې راورسېدل دا وخت موټروان وپوهېـد چې دا يـو طالـب مشر۔ دی، شـکيب وايي، مابه کله هغه ته ويل چې مـا نـور مشران داسي ليـدلي چې دعامو خلکو په وړاندي له يو دوه نفرو سره مسئلې حـل کوي او له هر کليوال سره ځان نه ستړی کـوي، هغـه بـه ويـل چې کله ته مشر شې بيا داسي کوه له ما داسي مه غواړه.

مولوي محمد يعقوب سلمان وايي :هغه مهال چې أمـير المؤمنين شيخ الحديث هبةالله أخندزاده صـاحب حفظـه اللـه قاضي القضاة و يوه ورځ زه له هغه سره روان وم او اغاصاحب

تقبله الله ليدلی وم، وروسته يې پوښتنه راځخه وکړه چې دا مولويصاحب څوك و ډېر اثرات مي پکې وليدل، دی وايي چې ما هغه ور وپېژاند او له هغه وروسته اغاصاحب تقبله الله له شيخ صاحب سره نږدې اړيکي جوړي کړې، شيخ صاحب حفظه الله به يې هم ډېر کورته ورته راته.

مولوي فتح الله صاحب وايي :له اغاصاحب تقبله الله څخه مي اورېدلي و چې ويل يې :په ح ج کې د طواف پر مهال ډېر ستړی شوم، داخيال به راته چې داسترپا به مي قبوله شي که څنگه؟ د شپې مي رسول الله مبارك صل الله عليه وسلم په خوب وليده او راته ويې ويل بېغمه شه زه درسره يم.

شهادت يې :دا چې شهيد ملا عبدالباسط) سراج ( اغاصاحب تقبله الله روان۱۴۴۰سپوږميز کال د اسلامي امارت په تشکيلاتو کې د ولايتي کميسيون غړيتوب درلود د شعبان مياشتې په وروستيو کې د شهيد ملا أحمدشاه ملنگيار تقبله الله په ملتيا د پکتيکا ولايت مقام په لارښوونه د دې ولايت اړوند څو ولسواليو ته د هيئتی په موخه لاړل چې نږدې يوه اونۍ موده کې يې ورکړل شوې برنامه ترسره او د ډيلي، جانېخېل او خوشامند ولسواليو هيئتي يې وکړه.

بالآخر هغه نه ستړی کېدونکی نوميالی مجاهد چې دوه جهادونه يې په هسکه غاړه پر مخ يوړل، د جهاد له ولولې هغه سرشاره مجاهد چې د خپل رفاه او پر آسوده ژوند دری برخي هوساينې يې د الله تعالی په لاره کې پر ستړو ستومانيو ورکړې او هغه شهکار مجاهد چې د دښمن لپاره يوه لويه سرخوږي گرځېدلی او د هغه ترټينگ مراقبت لاندې و، هو !د الله تعالی په لاره کې مهاجر او مسافر سرلوړی مجاهد ملاعبدالباسط اغا تقبله الله د خپل عمر د شپږمي لسيزي په وروستي) ۱۴۴۰سپوږميز (کال د روژې مبارکي مياشتي پر ۲مه د شپې يوه بجه الله تعالی ته د هغه په لاره کې منلې وينه او ژوند هم ور کړل، د پکتيکا ولايت خوشامند ولسوالی د معروف خېلو په کلي د اشغالگرو او گوډاگيانو په گډه چاپه کې د شهيد ملا احمدشاه ملنگيار او د فداءالحق په نوم مجاهد ملگري سره يو ځای د شهادت لوړ مقام ته ورسېد، شهيد اغاصاحب تقبله الله شاته مجلله علمي کورنۍ او مجهزه د مجاهدينو ډلگۍ پرېښوده چې د مشرانو ملگرو د يوې شورا په ترځ کې يې مشر زوی مولوي عبد الواسع خبيب حفظه الله د ځای ناستي په توگه معرفي او ډلگۍ مشر ومنل شو.

# جالبې دي!

١ – په خوست کې يو پوليس خپل ټوپک بوجۍ کې گرځوي.
٢ – دوستم د پکتيا پوهنتون د ادبياتو پوهنځۍ څخه ليد ه وکړه، ورته يې ووېل شاباس سم درس ووايئ، چې طب ته بريالي شئ!
٣ – کوچيان په دين سر ورکوي، خو زده کوي يې نه.
۴ – له احمقانو سره بحث کول داسې دي لکه د سړي چې گرمه تبه وي.
۵ – د اوبو څخه مېښه، او د بنجاره دوکان څخه ښځه، هيڅکله نه وځي.
۶ – عجيب خلک يوو، د سر ويښتان په لکونو لگوو او د ږيرې ويښتان مفت لرې کوو.
٧ – غريب سړی په دوو وختونو کې چرگ خوري، کله چې دی پخپله مريض شي او کله يې چې چرگ مريض شي.
٨ – ريل گاډی هيڅکله نه پنچرېږي.
٩ – په افغانستان کې ميندې خپل بچيان د ورځې څلور ځلې شماري.
١٠ – موبايل له پيغلې نجلۍ سره داسې دی لکه : دويم مېړه

## دمحمدمرسي مظلومانه شهادت

# او دمصر خوفناک مستقبل



شهیدزوی

محترمو لوستوالوته به یاد وي چې دعربودبهار په لړ کې دتیونس نه پس د مصر دپلازمېنې قاهرې په تحریر څلورلارې کې دسیاسي بې عدالتۍ ، دپولیسواونورو امنیتي ځواکونو د سختو ظلمونو، په انتخاباتو کې د درغلیو ، اداري فساد ، دیکتاتوري قوانینو، دبې کارۍ د زیاتوالي ،دنرخونو لوړوالي اودکارګرودمزد دکموالي پرضد د۲۰۱۱م کال د جنورۍ میاشت په ۲۵مې نېټې دپیل شویو مظاهرونه کابو دوه نیمې اوونۍ پس چې دولس سېلاب ددولت له کنترول نه ببخي ووت نو دفرورۍ په ۱۱مې نېټې د ولسمشرحسن مبارک مرستیال عمر سلیمان دحسنی مبارک استعفی اعلان اوواک اختیار عبوري شورى ته وسپارل شو؛ ددې شورى له لورې دفرورۍ په ۱۳ مې نېټې دمشرانو اودنمایندګانو دواړه جرګې تحلیل شوې ؛ دانتخاباتو دکېدوپورې تر راتلونکو ۶میاشتو واک فوځ ته ورکړل شو او دلومړي وزیر احمد شفیق په شمول ټوله کابینه عبوري کابینه وګڼل شوه .

د۲۰۱۲م په اګست میاشت کې په ترسره شویو ولسمشریزو او پارلماني دواړو انتخاباتو کې دالاخوان المسلمون په نوم هغه اسلامي ګوند واک ته ورسېدلو چې نېږدې له ۸لسیزو راهیسې ددولت د سخت جبر او تشدد ښکارو نودهېواد ولسمشر دمحمدمرسي په نوم هغه شخص وګرځېد چې زدکړې یې تردوکتورا رسېدلی وې اوآن دامریکاپه پوهنتونونوکې یې هم استاذي کړی وه؛ په مزاج کې یې ډېره عاجزي وه ؛دنړۍ دترټولوکم معاش اخستونکی ، دملي خزانې سره محتاط اوکم ګټه پورته کونکی ، داسلام غمخوار ، دهېواد اوملت خیرخواه ولسمشرو؛ د ولس دمشکلاتوختمول ؛ دفساد له منځه وړل ،دعدل اوپرمختګ راوړل یې یواځنۍ هیله وه ؛ دسیکولر مصرپرځای یې اسلامي مصرغوښتلو ؛ دامریکا ، نورلویدیځ اواسرائیلو داغېزونه یې دمصر دازادولو اواسلامي نړۍ ته دورنېږدې کولولپاره عملي اقدامات پیل کړي وو اوډېره مهمه اودمصر لپاره ګټوره داچې کابینه یې کابوسل په سلوکې متخصصه وه.

دمصر د تاریخ لومړی منتخب ولسمشر دکتور محمد مرسي دمصروضعي قوانین په اسلامي قوانینودبدلولو لپاره هڅې پیل کړې وې اوترڅنګ یې دا اراده هم لرله چې داسې یو شق دقانون برخه وګرځي چې له مخې یې بیا کوم دیکتاتور دمنتخب دولت پرضد کودتا ونکړای شي.

بس همدا هغه اقدامات ووچې دمرسي ددولت دله منځه وړل کېدولوی لامل وګرځېد ځکه چې داستربدلون نه امریکا ،نورلویدیځ اواسرائیلوته دمنلو وړو اونه هم داسلامي نړۍ شاهانو اودیکتاتورانوته نوځکه دهمدې امریکا ، اسرائیلو اودسیمې شاهانو اودیکتاتورانوپه لمسون اومالي مرستو په انتخاباتوکې ماتې خوړلې ډلې ؛ قبطي عیسویان اودغربي این جي اوګانوکارکونکي دښاغلي مرسي ددولت پرضد د۲۰۱۳ م کال په ۲۸ مې نېټې لاروکوڅوته راووتل اولاکال نه وپوره چې دمرسي اداره یې په بې کفایتۍ اوپه کړوژمنو نه ودرېدلو تورنه کړه چې دامریکااوداسرائیلودصهیونستي رژیم له لورې داسلام اومسلمانانوپرضدديوې پلان شوې طرحې دعملي کولوپه موخه جنرال السیسي همدالاریونونه پلمه کړل ؛ ولسمشر مرسي ته یې ۱۸ ساعته وخت ورکړ چې په ۱۸ ساعتونوکې دې دولت دخلکوغوښتنوته مثبت ځواب ووایې ګیني فوځ به بیا بله لار خپله کړي ؛ مرسي فوځ ته دسر ټیټولوپرځای دخپلې چوکۍ قربانولوته ترجیح ورکړه اوداسلام د دښمنانو له لورې د ورکړل شوي پلان سره سم د۲۰۱۳م کال دجولای په ۳یمې نېټې فوځي مشرالسیسي دمصر دتاریخ دلومړي منتخب ولسمشر پرضد کودتا وکړه ؛ په ډېرې بېړۍ یې دولس دقاطع اکثریت د خوښې اورایې په نتیجه کې رامنځته شوی دا اسلامپال قانوني دولت دیوکال واکمنۍ وروسته رنګ کړ اوپرځای یې دمسلمانانو دوژلو اوځپلولپاره پخپله د واک په ګدۍ کېناست.

مرسي اودهغه دکابینې ټول سرکرده غړي یې ونیول اوزندانیان یې کړل .

دالسیسي ددې خورانا وړه اقدام پرضد داخوان المسلون سره تړاو لرونکي اونور مذهب پلوه مسلمان سړي اومېرمنې په ټول مصرکې لارو کوڅوته راووتل او دکوچنیانواومېرمنوپه شمول په سونو زره مسلمانان له خپلوکورونو بهر دقاهرې په دوه ځایونوکې تر یوې

نیمې میاشتې تـم شـول اوخپـل احتجـاج تـه یـې دوام ورکړخوظـالم فوځي مشرېې غوښتنې ته هـیڅ توجـو ونکـړه اونـه پـرې هـم منـافقې غربې نړۍ د ولس دغوښتنې منلولپاره فشار راوست بلکې د ۲۰۱۳م کال داګست په ۱۴ مې نېټې ظالم فـوځ ددې سـتر ولسـي احتجـاج پرضد دوحشت نه ډک فوځي عملیات تر سره کـړل چې دکوچنیـانو او مېرمنوپه شمول پکې له ۷ زیات مسلمانان ووژل شول ؛ پـه زرونـو ټپیان اوپه زرونو دوحشت نه ډکو زندانونوته یوړل شول چې پـه دوئ کې ګڼ شمېر ځوانان ژوندي ورک دي اوګڼ یې دمـرګ پـه سـزا اویـا هم داوږدې مودې په بندمحکوم شویدي .

دبشـردحقوقونړیوالو ادارو (ایمنسـټي انټرنیشـنل ) او (هیـومن رایټس واچ ) له لورې په مستندو خپرو شـویو راپورونـوکې راغلـي وو چې

**د دکتورمرسي دلرې کېدونه پس د یو کال نه په کمې مودې کـې د السیسي دولت له ۴۰ زره نه زیـات تنـان زنـدانونو تـه ورل شـوي چـې دمصر په محاکمو کې ددولت دخوښې سره ددوئ لپاره دخیانت اونورو جرمنو دوسې جوړې شویدي اود انصاف دغوښـتنو دپـوره کولوپرتـه پـه مختلفو سزاګانو محکوم شویدي .**

واک ته دیهودی النسله جنـرال عبـدالفتاح السیسـي د رسـېدوله هماغې ړومبۍ ورځې راهیسې هغـه دمسـلمانانوپه نیولـو، بنـدیانولو شکنجه کولواو وژلو پیل کړی و چې دا لړۍ لاهم نده تم شـوی ؛ دده کودتایې اوپردي پالې ادارې په زرونـو مسـلمانان شـهیدان کـړي ؛ پـه لسګونو زره یې ټپیان کړي اوپه لسګونوزره نوریې یـواځې دمسـلمانۍ اوداخوان المسلمون سره دتړاو یادخواخوږۍ په جرم زنـداني کړیـدي .

ظلم او وحشت یواځې تر السیسي نـدی محـدود بلکـې دمصـر پـردي پـالو ،ظـالمو ،اسـلام دښـمنو،اجیرو محـاکمو هـم دمسلمانانودځپلوپه جنایت کې برابـره ونـډه اخسـتې ده ؛ پـه پرلپسې ډول دمصر فرعوني رژیم دځپلو اسلام دښمنوتش په نامه قاضیانو پـه واسـطه داخـوان المسـلمون پـه مشـرانو، غړواوپلویـانو یـاداخوان المسـلمون سـره یـواځې دتړاو لرلـو اویالـه دې املـه چـې د السیسـي دکودتا پرضد دمصردمسلمان ولس په اعتراضیه لاریونونو کې برخـه اخستې وه داوږدومودو لپاره دزنداني کولواواعدام حکمونه صـادروي ؛چې په همـدې لـړ کـې یـې دمصـر اصـل قـانوني اویـواځني منتخب ولسمشر ړومبی پدې تورچې دځپلې واکمنۍ په وروستیو ورځـو کـې یې د لاریون کونکو دنیولو اوسکنجه کولـوحکم کـړی و پـه ۲۵ کالـه بند محکوم کړ ؛ ددې ترځنګ فوځي دولت پرمحمدمرسي دا تـورهم لګولی و چـې پـه ۲۰۱۱م کـال کـې یـې زنـدان مـات کـړی و؛ همـدا تورفوځي محاکموپلمه کړ او د۲۰۱۵م کال په جون میاشـت کـې یـې محمدمرسي دمرګ په سزا محکوم کړ.

د فوځي محاکموله لورې دمرسـي ترڅنګ داخوان المسـلمون روحاني مشرپروفیسور دکتور محمد بدیع ، دده نائب دکتـورخیرات الشـاطر ، داخـوان المسـلمون مرکـزي مشـر دکتورمحمـد البلتـاجي ، دمحمدمرسـي داداري دپارلمـان منتخب ویانـد دکتورسـعد الکتـاتني اوداسـلامي نـړۍ ددیني عالمـانو دتنظـیم مشرپروفیسوردکتورمحمد یوسف القرضاوي په ګډون ۱۳ نورمشران دهغـوئ پـه نـه شـتون کـې دمرګ په سزا محکوم شویدي ؛ لـه دې مشـرانو پرتـه داعـدام پـه سـزا داخوان السلمین کشران هم په اعدام محکوم شوي وو چې شمېر یـې ۱۰۶ تنانوته رسېږي .

دفوځي محاکمو ددې پرېکړې سره دملګروملتونو ادارې خپـل مخالفت ښکاره کړی و او ویلې یې ووچې دخلکو په هکله پـه اټکـل دمرګ داسې پرېکړې په تاریخ کې ساری نه لري.

خو متأسفانه چې دې ادارې لـه دې اخـوا ددې ظلـم پرضـد بـل هیڅ عملي اقدام هم نه وکړی .

پرمحمد مرسي داتورهم لګول شوی و چې قطر یې دخپلـوملي مهمورازونو نه خبر کړی چې له همدې امله په ۲۵ کالـه قیـد محکـوم شوی و ؛ همدا راز دڅه نورو تورونو له امله په ۱۵ کالـه نـور قیـد هـم محکوم شوی و.

د۲۰۱۶م کـال دنومبرمیاشـتې پـه ۱۵ مـې نېټـې دمصـر سـترې محکمې دمحمدمرسي دمرګ سزا لغوه اعلان کړه خو دقید سـزاګانې یې همداسې په خپل حال پاتې وې .

دیـادولو وړ ده چـې دکتورمحمـد یوسـف القرضـاوي چـې پـه ۱۹۲۴م کـال کـې پـه مصـرکې زېږېـدلی دی ۵۸ کلونـه وړانـدې دمصریوپیخواني ولسمشر جمال عبدالناصر له هېواده ویستلی و؛ بیا دانورالسادات اوحسنی مبارک دواکمنیوپرمهـال هـم هغـه تـه مصـرته دراتلواجازه نه وه ورکړل شوې ؛ په ۲۰۱۲م کې چې دمحمدمرسی په مشرۍ کې داخوان المسـلمون واکمني راغله نوورتـه دخپـل پلارنـي ټاټوبي نه دلیـدنې اجازه ورکـړل شـوه اوهغـه تـه ایلـه ۵ لسـیزې پـس دخپـل ټـاټوبي لیـدل نصیب شـول ؛هغـه ددولـت پـه اجـازې دخپـل ټاټوبي نه لیدل کړي و اوبس ؛شاید همدابه داسـی سـترجرم وي چې له امله یې السیسی دپخوانیوحاکمانونـه هـم لـس قدمـه وړانـدې ولاړ اودا ۹۰ کلن سپین ږیری عالم یې دمرګ په سزامحکوم کړ.

دمصردعدلې وزارت معین عادل الفهمی رسنیو ته ویلـی وچې دمصـرمحاکمو یوسـف القرضـاوي پـه مـرګ محکـوم کړیـدی اوزموږدبانـدنیوچارو وزارت دقطـر نـه دوه ځلـی مـوږ تـه دده دراسپارلوغوښتنه کړیـده ، دا اوس دقطراخلاقـي مسـئولیت دی چې

هغه اوداخوان المسلمون ټول هغه مشران چې مورږ يې غوښتنه کوومورته راوسپاري .
ددې سپين ږيري نړيوال ديني شخصيت پرضد شوې دوحشت نه ډکه پرېکړه امريکا اوداروپااواسلامي نړۍ نېږدې ټولوهېوادونو غندلې وه اودايې دانصاف له غوښتنوډېره لرې ګڼلې وه خوبياهم دمصراداره له خپلې پرېکړې نه وه وروسته شوې اواصرار يې کاوه چې دقضاپرېکړه به تطبيقېږي .
په زړه پورې داده چې داعدام په سزا په محکومو شويوتنانوکې ۵هغه فلسطيني ځوانان هم شامل دي چې کلونه وړاندې پرغزې داسرائيلوپه هوايي بمباريوکې په شهادت رسېدلي دي ؛ له دې ۵ له جملې نه حسام الصائغ په ۲۰۰۸م کې شهيد شوى ؛ تيسيرابوسنيمه په ۲۰۰۹م کې اورائد الطيارپه ۲۰۱۴م کې په شهادت رسېدلى دى .
نودمصرد محاکمو دظلم اوجبرترڅنګ دبې خبرۍ اوجهل داحال دى چې پکې مړي هم داعدام په سزامحکومېږي ؟!

**له دې هم زياته عجيبه او د خندا وړخبره داوه چې په محکوم شويومصري مسلمانانوکې يوشمېرهغه يې چارګان هم شامل وو چې جرم يې دالسيسي دادارې پرضد دتېرکال په اعتراضيه غونډوکې ګډون ګڼل شوى حال داچې هغوئ کلونه وړاندې له دې نړۍ سترګې پټې کړيدي ؛ نومصرد نړۍ يواځنى هغه هېواد دى چې پکې مړي جرمونه هم کولاى شي اودمرګ په حالت کې دکړوجرمونوله امله يې ددې هېوادمحاکم په اعدامونوهم محکومولاى شي .**

پر مرګ دمحمدمرسي دمحکومېدونه څو ورځې وروسته دسينا ۶ اوسيدونکي دمصرپه يوفوځي زندان کې پدې تورپه دار وزړول شول چې په سيناکې فعالې ډلې (( انصاربيت المقدس)) سره يې تړاو،اوپه فوځ يې په يو تازه شوي بريدکې لاس درلود .
ددې اعدامونوپه هکله دبشردحقوقودساتنې نړيوالې ادارې (( ايمنستي انټرنيشنل)) ويلي و چې داعدام شويوتنانودوسې ډېرې کمزورې وې اودزور اوسختوسکنجو له لارې ترې اقرارونه اخستل شويدي اوبياپه دارزړول شويدي نوځکه بايد دادعدلې قتل وګڼل شي .
ددې پېښې په اړه هيومن رايټس واچ اوايمنستي انټرنيشنل دواړونړيوالو ادارو ويلي وچې په فوځ باندې دکومې حملې په تورچې دا ۶ تنان اعدام شول په دوئ کې ۳ تنان لا ددې پېښې نه ۳ مياشتې وړاندې زنداني شوى وونوڅرنګه کېداى شي چې هم دې دوئ په زندان کې وو اوهم دې يې په فوځ حمله کړې وي ؟!
ايمنستي انټرنيشنل ادارې ويلي و چې دمرسي پرضدجوړه شوى دوسيه هم دې ته ورته اوسراسرپه بې انصافۍ ولاړه وه.

محترمولوستوالو وګورئ ! مصرداسې يوهېواد دى چې پکې څوک په زندان کې شپې ورځې تېروي په همدې وخت کې يې دولت دزندان نه بيرون دترسره شوي يوسترجرم مرتکب ګڼي ؛ که څه هم داسې کېدل ناشوني وي خوبيابه هم ددولت خبره سمه ګڼل کېږي اودده پورې دتړل شوي همدې جرم له امله به هغه اعدامولى هم شي !؟
ښاغلى مرسي چې په کومو دوه جرمونو تورن کړاى شويدى هغه دواړه هم بېخي داسې دي لکه ددې ۳ زندانيانوجرم .
ترکومه چې په ۲۰۱۱م کې دزندان ماتولوخبره ده نوپه هکله يې ايمنستي انټرنيشنل داسې ويلي و : دحسنى مبارک دواکمنۍ پرمهال دکتورمرسي په زندان کې و؛ دتيونس نه پس په مصرکې ملي پاځون رامنځته شواوچې زوريې واخسنت اوپاځون کونکي غالب شول نودزندان عمله وتښتېده ؛يواځې زاندان نه بلکې دقاهرې په شمول په ټولو هغوښارونوکې چې پاځون کونکي پکې غالب ووپوليس پکې په سترګونه ليدل کېدل نوکله چې زندانيانو دزندان عمله وليدله چې تښتي دمحمد مرسي په شمول ټول زندانيان هم له زندان نه راووتل؛ نه مرسي ، نه اخوان المسلمون اونه هم بل چا زندان مات کړيدى يانې دزندان ماتېدلو پېښه له سره رامنځته شوى نده نوپه کوم دليل پرې مرسي داعدام وړګرځول کېږي ؟
نوداهم دحيرانتيا وړخبره ده چې جرم بېخي وجود نه لري خودمصرمحاکموکمال وګوره چې همدا معدوم جرم موجودګڼي ؛ مرسي يې مرتکب ګڼي اودومره يې لويوي چې مرسي پرې داعدام وړبولي ؟!
ايمنستي انټر نيشنل وايي چې دسيسي ادارې محاکمو ته هيڅ داسې ثبوت وړاندې نکړ چې مرسى خپلو پلويانوته دتاو تريخوالي حکم کړى وي اويادده دپلويانو له لورې تاوتريخوالي رامنځته شوى وي .
پدې اړه دايمنستي انټرنيشنل له لورې په خپورشوي راپورکې راغلي و چې دمرسي پرضد جوړه شوى دادوسيه له شرمه ډکه ده اوپکې دانصاف شکل په کلي ډول مسخه شويدى.
سره له دې چې ټولې نړۍ ته معلومه وه چې پر مرسي لګول شوي ټول تورونه بې اساسه اوپرضد يې شوې کودتاډېره دظلم نه ډکه وه خو دبشردحقوقو دعوه لرونکو دامريکا په څېر سترو هېوادونوکې يوهم دزندان نه دمرسي دازادولو لپاره پر مصرفشار را نه وست ؛ هغه بې له کوم جرمه څه دپاسه ۶ کلونه دوحشت نه په ډکوزندانونو کې تېر کړل .
دروان ۲۰۱۹م کال دجون په ۱۷مې نېټې پرهغه دجاسوسۍ دلګېدلي تور په اړه دقاهرې په يوې عدلې کې قاضي ته دهغه

دیوښتنوځوابونه ورکول چې ناځاپه راپرېوت اوددنیا دعدلې نه درب عدلې ته ورسېد .

په محکمه کې دقاضي ترمخه دمصردتاریخ دترټولو ړومبني منتخب لـری کـړی شـوي ولسمشـر دکتورمحمدمرسـي مړینـې دټولومسلمانانواوپه ځانګړې ډول دمصریانو پـه زړونـو او اعصـابو ډېرې جورې اغېزې کړیدي .

محمدمرسي څنګه ناځاپه راپرېوت او ومړ؟

دالا تر دې دمه نـاجواب شـوې پوښتنه ده اوشـایدهیڅکله یـې هم جواب ونه موندل شي .

دهغه مرګ چې په مشکوک او لـه تشویش نـه ډک حالـت کـې وشو پدې هکله ډېرې پوښتنې رامخې تـه شـویدي ؛ دبشـر دحقوقـود ادارو اوقـانون پوهـانو لـه لـورې پـدې هکلـه اعتراضـونه وشـول او لـه هرلورې دسمو څېړنولپاره اوازونه راپورته شـوي خـو دمصـر داوسـني دولت په شتون کـې منصـفانه او آزاده څېړنـه لـه امکـان نـه ډېـره لـرې ښکاري .

دالاخوان المسلمون سیاسي ځانګې ویلي دي چې پـه مصـرکې داقتصادي بحران دی ،غربت اوبې کاري ډېـره زیاتـه شـویده چې لـه امله یې د دولت پرضدپه خلکوکې دپاڅون احساس مخ پرزیاتېدو وو اوډېروسیاسیونو ددې ستونزې حل دمحمدمرسي پـه بېرتـه راویسـتلو کې لیدلوچې داکار دسیسي لپاره دمنلوړ نـه و نوځکـه یـې هغـه پـه زندان کې قتل اوله سحنې لرې کړ.

دمصردچارو پوهان هم ورته نظر لري او وایې چې د السیسي سره د نـه جـوړ جـاړي لـه املـه محمدمرسي وژل شـویدی؛ پـدې اړه خپرو شویو راپورونوکې راغلي دي چې دروژې میاشـت کـې السیسي دخپل دولت یو لوړې پوړی پلاوی هغه زندان تـه ورلېږلـی و پـه کـوم کې چې محمدمرسي او داخـوان المسـلمون ګڼ نورمشـران زنـدانیان وو؛ پـلاوي داخـوان المسـلمون مشـرانو تـه ویلـي وو چـې کـه مرسـي دالسیسي دولت ومنې نو په بدل کې به یې دولـت دمرسي او داخـوان المسلمون دمشرانو پرضد جوړی شوې دوسې بندې کړي اومرسي بـه دخپلې کورنۍ سره یوبهرني هېواد ته ولېږي ؛ له اختر وروسـته هـم دا پـلاوی څوځلـه زنـدان تـه ورغلـی و اود اخـوان المسـلمون مشـرانو د دولت پیغام مرسي ته رسولی و خومرسي نـه وه منلې نوځکـه دولـت هغه له منځه یوړو.

دمصـر اسـلام خوښـي سیاسـي ولسـي ګونـد( دعـدل او آزادی ګوند ) مشرعمرو دارج په هماغه ړومبی ورځ وویـل چـې مرسـي پـه خپل طبعي مرګ نه بلکې دفلسطین دپخواني ولسمشریاسرعرفات پـه څېر دپلان له مخې زهر ورکړل شوي اووژل شویدی .

هغـه غوښـتنه وکـړه چـې پـه نړیوالـه سـطحه دې ددې خبـرې دسـپیناوي لپـاره کمیسـیون جـوړ او آزاد تحقیقـات دې وشـي ؛ کـوم دولت چې هغه وژلی دی دهغه دولت څېړنې دمصرخلکوته دمنلو وړ ندي.

دمحمدمرسي دمرګ په اړه په خپل خپور کـړي تفصـیلي راپـور کې الجزیره تلویزون هـم ویلـي دي چـې محمدمرسـي تـه څـو ځلـی دخوشی کولو اویو بهرني هېواد ته دلېږلو وړانـدیز شـوی خـو هغـه رد کړیدی .

الجزیره وړاندې وایې چې اصل خبره داده چې دهېواد ټولو بـې طرفوجهتونومرسي دهېواد قـانوني ولمشـر بللـو اودهغـه معزولـي یـې دمصر د اوسني بحران اصل سبب ګڼلو ؛ دمرسـي معزولولـو اوزنـدان ته یـې لیږلـو دمصـرځوانان سـخت نـاهیلي اوپـر دولـت بـې اعتمـاده کړیدي نوځکه دمصـر دوسـتو هېوادونـو هڅـه کولـه چـې دزنـدان نـه دمرسي په راویستلو دولت له مشکلاتو راوباسي ؛ دمصـر یـو دوسـت هېواد د زندان نه دمرسي راویستلو او دخپلې کورنۍ سره یوځـای یـې جرمني ته دلېږلو مصارف هم پرغاړه اخستي وو خو مرسي دې جـوړ جاړي ته چمتو نه شو.

د دیکتاتور السیسي لـه لـورې دمحمدمرسي دوژل کېدلوخبره یوائې داخوان المسلمون غړي یا نوراسلام خوښي مصریان نـه کـوي بلکـې دهغـه مخـالفین هـم دمحمـد مرسـي دناڅـاپي مـرګ خبـره دتوجـواوڅېړنې وړ ګڼـي ؛ د شـباب الشـورة پـه نـوم دمصـر دولسـي حرکـت نـامتوغړي یاسـر الهـواري ویلـي دي چې بایـد لـه دولـت نـه دمحمدمرسي دعلاج په باره کې دغفلت کولوپوښتنه وشي اود زنـدان په شپو ورځوکې چې هغه ته کوم خوراک اودواګـانې ورکـړل شـویدي راپوریې خلکوته وړاندې کړای شي .

یاسر الهواري حسن مبارک اومحمدمرسي ته ددولت لـه لـورې دورکړل شویوطبي اسانتیاو موازنه کړی او ویلـی یـې دي چې حسـن مبارک به محاکموته دحاضرېدو نه پس دقاهرې تر ټولواعلی اودلوړو لګښـتونو روغتـون تـه وړل کېـدلو ؛ طبـي معاینـات بـه یـې دامریکانـه راغلـو ډاکټرانوکـول او یـو مسـتقل طبـي ټـیم بـه یـې ۲۴ سـاعته پـه خدمت کې و خو د محمدمرسي سره دومـره ظلـم روان وچـې زنـدان کې به عادي ډاکتر دوا ورکوله اودابه یې هم نه ښکاره کوله چې هغـه په کومو مرضونو اخته دی او مریضتیا یې سطحي یا جوره ده ؟

په نړیواله سطحه نامتوقانون پوه (ریس ډیویز) دمرسي دمړینـې په هکله دتحقیقاتو غوښتنه کړیده او ویلی یې دي چې دمرسي دمرګ خبره دومره اسانه نده څومره اسانه یې چې دالسیسي اداره ګڼي ؛هغـه کوم داسې ترویست نه وچې فوځي زندان کې یې ساه ورکړی اوکیسه یې پای ته رسېدلې وي ؛ هغه یو منتخب ولسمشـر و او د دولـت پـه

زنـدان کې ومړ پـر دولـت لازم وه چې هغـه تـه يـې هـر ډول طبـي اسانتياوې برابرې کړی وای .

ښاغلی ډيويز ويلي چې محمدمرسي لا میاشت وړانـدی ويلـی و چې دولت يې د وژلو اراده لري ؛ طبي اسانتياوې ورته ندي برابرې او دخپلو وکيلانو سره دليدلو اجازه هم نه ورکول کېږي .

په مصرکې دبشر دحقوقو نړيوالو ادارو هم ويلي دي چې داسې ګڼ شواهد ددې خبرې ګواهي ورکوي چې محمحـد مرسـي مړشـوی نه بلکې وژل شويدی.

مثلاً دا چې داخل محاکموته دحاضـرولوپرمهال داسې امنيتي تدابير نيول شوي وو چې وړاندې يې هيڅ سـاری نـه ليـدل کېږي ؛ د کورنيووچارو دوزير دوه مرستيالان هـم راغلي وو چې وړانـدې کلـه داسـې نـه و شـوي ؛محاکموتـه دمحمدمرسـي د وکيلانـو اومرسـته کوونکوقانون پوهانو بې ساري سـخته تالاشـي اخسـتل شـوی وه اود تېر برعکس ورتـه دموبايـل تليفونـو وړلـو اجـازه هـم نـه وه ورکـړل شـوی ؛ دقاضـيانوترمخه محمدمرسـي دخـه ويلـو اجـازه وغوښـتله ؛ داجازې ورکول کېدو نه پس هغه وويل چې صـحت مې ډېـر خـراب دی ، په رواني اوونۍ کې څوځله بې هوښه شـوی يـم خـو راتـه طبـي مرسته نده راکړل شوی ؛ بيا يې وويل دخپلـو وکيلانـو سـره دې راتـه دخبرو اجازه راکړل شـي ،څـه اسـرار ورتـه ښـکاره کـول غـواړم ؛ داد مصر دملت اړوند ډېر مهم خطرناک اسرار دي چې زما سينه کې دي اونه غواړم چې همداسې زما سينه کې پاتې شي .

خو هغه ته دخپلو وکيلانو سره دخبرو اجازه ورنکړل شوه بلکې مايکرافون وربانديې پرې شو چې څولمحې پس هغه پرشيشې پوښـل شوې وسپنيزې پرنجې کې بې هوښـه شـو اوراپرېوت ؛ **دبـې هوښـی سره سم ټول پوليس اودامنيت لپاره ګومارل شوي تنان لـه سـحنې ورک شول په نوروپنجروکې بندوداخوان المسـلمون غړوډېرې چغـې ووهلـې چې مرسي ته دې ژر ډاکتران حـاضرکړای شي خـوترنيم ساعت پـورې هيڅوک رانغلواو ايله هغـه وخـت پـوليس ببرتـه راغلـل چـې دده مړينـه يقيني شوی وه .**

دهغه جسدبېرته طره نومي زندان ته يوړل شو کوم کې چې لـه تېرو ۳ کلونو راهيسې هغه زنداني و ؛ په سبا يانې دجولای پـه ۱۸ مـې نېټـې پـه زنـدان کـې دننـه دهغـه جنـازه وشـوه چـې پکـې دهغـه ددوه ورونوپه شمول دکورنۍ څينوغړو اويوشـمېر هغوقـانون پوهـانو چې دده قانوني مرسته يې کولـه ګډون وکـړ اوتـر شـديدو امنيتـي تـدابيرو لاندې دقاهرې د النصرسيمې په هغې مقبره کې خاوروته وسپارل شو کومې کې چې دالاخوان المسلمون درې مرشدين دفن دي ؛ مرسي د الاخوانالمسلمون دمرشدعام مهدي عاکف په څنګ کې دفـن شـو ؛

مهدي عاکف په د۲۰۱۷م کال په ستمبر مياشت کې پـه همـدې طـره نومي زندان کې وفات شوی و.

نودې ټولو شواهدوته په پام سره نېږدې ټول مصريان همدا يـوه خبره کوي چې محمدمرسي ته هم دفلسطين د ولسمشر ياسـرعرفات په څېر زهر ورکړل شويدي.

دروان ۲۰۱۹م کـال پـه فـروری مياشـت کـې دياسـرعرفات پخـواني مشاورابوشـريف د اردن تلويزيـون سـره دخبرواتـرو پرمهـال وويل چې ياسر عرفات ته اسرائيلوپوليونيم زهر ورکړي وو.

همـدا راز د۲۰۱۵ کـال دنومبرمياشـت کـې دسـويس پوهنتـون دطب څانګې دياسر عرفات دمړينې پـه هکلـه يـو ۱۰۸ مخيـز راپـور خپور کړی و چې پکې يې پدې خبرې اعتراف کړی چې ياسر عرفات دپولونيوم زهرو پر مټ وژل شوی و.

دلتـه هـم زيـات احتمـال دی چې مرسـي تـه دې زهـر ورکـړل شوي وي څکه چې دزنداني کېدو په ړومبنو ۴ مياشتوکې هغه تری تم و او ديو انسان سره يې هم نـه و ليـدلي اوکـوم خـوراک چـې هغـه تـه ورکو ل کېدلو دهغې هيڅ راپور نشته چې څه ورکړل شويدي ؟

برتانوی جريدې انډي پينډنټ هـم ويلـي دي چې کلـه دقاضـي سـره دخبروپرمهـال مرسـي دشـکر دټيټېـدو لـه املـه بـې هوښـه اوبيـا راپرېـوت نولـه ۲۰ دقيقـو نـه زيـات هغـه همداسـې پـروت و؛ طبـي مرسته خولرې خبره ده هغه چا راپورتـه هـم نکـړ او چې کلـه پـوليس راغلل او امبولانس راوغوښتل شو نو امبولانس هم پوره نـيم سـاعت پس راورسېد اوبيا دطبي مرستې لپاره روغتون تـه يـوړل شـو؛ لـه دې معلومېږي چې مرسي عمداً وژل شوی .

دمنځني ختيځ لپاره دانډي پينډنټ همکار بيل ټريوو ويلـي دي چې مرسي ته دقاضـي سـره دخبـرو کولـو لپـاره ايلـه ۵ دقيقـې وخـت ورکړل شوی و چې دخبروپه جريان کې هغه دبې هوښه کېدونـه پـس راپرېوت اوپه دغه وخت کې په امنيت ګومـارل شـوي تنـان دمرسـي دپورته کولو او اوليه مرستې ورکولوپرځای عمـداً غائـب شـول اوچـې دشلو دقيقو نـه زيـات وخـت تېـر شـو نـو ايلـه راپيـدا شـول ؛ دانـډي پينـډنټ همکـار وايـې چې مرسـي دشـکر پرتـه ډېـر مرضـونه لـرل نوورسره دډاکترانوديوټيم شتون اړين و؛ دانډي پينډنټ همکار داهـم ويلي دي چې يوعيني شاهد حداد راته وويل چې دمرسي دبې هوښـه کېدو پرمهال دلته ډاکتران موجود وو اوهغوئ په ډېر تاکيد داغوښتنه وکړه چې مورږ ته دې دمرسي د راپورته کولو او اوليـه مرسـتې ورکولـو اجازه راکړل شي خو پرامنيت ګومارل شوو تنانو اجـازه ورنکـړه اونـه يې ورته دهغه وسپنيزه پرنجـه خلاصـه کـړه بلکـې پخپلـه چرتـه ورک شول.

پدې راپورکې داهم راغلي چې د مرسي داسارت پر مهال په ۲۰۱۳م کال کې ډاکترانو دهغه دزړه عملیاتو سپارښتنه کړی وه خو دولت خپل دا مسئولیت نه و ادا کړی .

دمصر په ټولنیزورسنیوکې ډېرو خلکو په ډېر جزم داخبره لیکلی ده چې دمرسي لپاره جوړه شوی وسپنیزه پرنجه ټوله په شیشې پوښل شوی وه اوپکې داکسیجن دتدریجي کمولونظام هم فعال شوی و ؛ مرسي چې دقاضي سره خبرې کولې په تدریجي ډول دهغه آکسیجن کم کړای شوی و ترڅودقاضي په وړاندې دهغه ساه بنده او ډېرې خبرې ونشي کړای چې همداکار دهغه دمړینې سبب وګرځېد.

همدا راز دملګرو ملتونو دبشر دحقوقو ادارې هم له السیسي غوښتي چې دمرسي دمړینې په هکله دې نړیوالو ادارو ته دڅېړنې موکه ورکړې ترڅو په پرنجې کې دمرسي دمړینې په هکله راپیداشویو شکونوته ځواب وویل شي .

دنړیوالو له لورې دڅېړنو ډېرې زیاتې غوښتنې کېږي خود السیسي دواکمنۍ پرمهال درښتني اوپر انصاف ولاړې څېړنې هیڅ تمه او توقع نه شي کېدای ؛ پدې هرڅوک پوهېږي چې دمصر دمنتخب دولت پرضد له کودتاه نیولې دمحمدمرسي تروژلوپورې چې السیسي څومره ظلمونه کړیدي دا ټول یې دامریکا او اسرائیلو په لمسون کړیدي ؛ دالسیسي سره چې دده په څېرسل نورحاکمان یوځای شي په خپل جرأت دهغه کارونوعشر عشیر هم نه شي کولی کوم یې چې وکړل .

تاسې وګورئ !په نړۍ کې چې کوم فوځي دیکتاتور دمنتخب دولت پرضد کودتا وکړي دلویدیځ اوپه ځانګړې ډول دامریکا اړیکې ورسره څومره زیاتې خرابېږي اوڅومره بندیزونه وربانديې لګول کېږي خو دلته چې السیسي دمنتخب دولت پرضد کودتا کوي اوبیا په زرونو ولسي وګړي وژني اوپه لسګونوزره زندانیان کوي نودلویدیځ او په ځانګړي ډول دامریکا اړیکې ورسره ډېرې ښه کېږي او ټول وحشت یې دتائید وړ ګڼل کېږي.

نو امریکا او اسرائیل چې وي دمحمد مرسي دمرګ په هکله دیوې سلنې سمې څېړنې تمه هم نه شي کېدای بس نړیوالې ادارې به دخلکو په سترګوکې دخاورو اچولو اودخپل ناپیلتوب ښکاره کولولپاره خپلې اندېښنې ښکاره کوي او ددولت نه به دموضوع په هکله دسمو څېړنو څو ګرمې ګرمې غوښتنې وکړي د السیسي اداره به څه وعدې وکړي اوچې څه وخت تېر شي بیابه پخپله موضوع سړه شي .

امریکا اونور لویدیځ ته ښه معلومه ده چې دمصرپه زندانونوکې دالاخوان المسلمون مشران او غړي اونوراسلام خوښي زندانیان سخت سکنجه کېږي چې دسختوسکنجوله امله ګڼ شمېر مسلمانان شهیدان شویدي؛ ازادو رسنیو په ډېر جزم داخبره کړیده چې دمحمدمرسی دوخت دپارلمان غړی محمد الفلاحي په زندان کې دسختوسکنجو له امله په شهادت رسېدلی او له هغه وړاندې د۲۰۱۷م کال دمئ میاشتې په ۱۵مې نېټې داخوان المسلمون یومهم مشراودمصرنامتوڅېړونکی اومحقق فریداسماعیل هم دزندان عملې په وهلو وهلوپه شهادت رسولی و.

د۲۰۱۷م کال په جون میاشت کې دوطن نیوزله لورې خپورشوي یوراپورکې راغلي و چې دمصرپه زندانونوکې پراسلام خوښوله حده زیات ظلمونه روان دي ؛وطن نیوز وړاندې لیکلي وچې د ۲۰۱۶م کال دجون نه د۲۰۱۷ کال دجون میاشت پورې دمصرپه زندانونوکې دظلم اووحشت په نتیجه کې داخوان المسلمون ۱۳۵ دلوړی اوټیټې پایې مشران په شهادت رسول شویدي خوددوئ په اړه هیچاته دڅېړنی اجازه نه ورکول کېږي .

دبشردحقوقو نړیوالې ادارې هیومن رایټس ویلي له لورې په یوتازه خپور شوي راپور کې راغلي چې دمصرزندانونوکې په زندانیانونوډېرلوی وحشت روان ؛

دمصرامنیتي ادارې په زندانونو کې دښوونځوپه زده کونکوتنکوځوانانو اومېرمنوپه لوړه پیمانه جنسي تېري هم کوي ؛پدې بد اخلاقیو دالسیسی دادارې دمجرمانه چوپتیانه داسی ښکاري چې داهم دخپلومخالفینوپرضد دسیاسي پلان برخه ده.

بس دالسیسی فکردادی چې دخپلو مخالفینو په وژلو؛ په لوړه کچه یې دزنداني کولو اوپه لوړه کچه یې په اعداملوکې دده د قدرت بقا نغښتی ده نوځکه یې دهمدې فکرعملي کولوته متې رانغښتی دي

داهم څرګنده خبره ده کې دظلم اوجبریواځنی هدف داسلام پالو دمبارزې څپل دي خو مصري جابره اداره باید پدې پوه شي چې دجبر اوتشددله لارې دحق اوصداقت دمبارزې مخنیوی نه شوی اونه به وشي لکه چې دمصرنوروجابرو واکمنانو دا ارمان له ځانونوسره خاوروته یوړو السیسي به یې هم یوسي ؛حق اوصداقت به دظلم اوجبر په مقابل کې سرټیټ نکړي اویوه ورځ نه یوه ورځ به داقربانئ رنګ راوړي .

دمصري دولت له لورې دستروظلمونویوه بله حتمي نتیجه چې څوک ترې یادونه نه کوي ؛ څه یې یادونه ضروري بولم ؛ چې هغه په مصر کې ددولت ضد دوسلوال مقاومت پیلېدل دي.






# هلته چې ديـمكراسي راج لري...!

بشيرافغان

زمــوږ هيوادتــه دبــې۵۲ الوتكوپــه ججــوروكې دپــردۍ اوغيرفطري ديمكراسۍ د توغولو وروسته زموږدټولنې راتلــونكى فكري اوعقيدوي سرنوشت دخورا ســتروننگونو او گواښــونوسره لاس وگريوان ښــكاري، سيكولرســتان اوپرديپــالان مــنظم شــوي هغوى هڅې كوي چې ديندار افغاني معاشره هم لكه دغــرب بــې دينه، بيحيا اوبې روحه وگرځوي

اومســلمان افغــان ولــس دترقــۍ، پرمختــگ اوازادۍ پــه خوږوشعارونوتيرباسي، مختلف مادي لالچونه ورته ځلوي او پــه ډيرچل وهنريې اخلاقي، ديني اوكلتوري ارزښتونه يوپــه يــونړوي اوغربي دودونه اوبيحياكلچرپرې تپل غواړي

ديمكراسي چې مذهب اوديــن نــه منــي، ياپربــل ســپيناوي ديمكراسۍ كې دين له آره ځاى نلري؛ اوپه شــتون كــې يــې دينــي قوانين اواحكام پلي كيدل تقريباً ناممكن دي،ديمكراتان هم لــه اره په هيڅ دين باورياعقيده نلري،لويديځ كې داسې خلــك دشــميرله پلوه كم ندي چې هغوى دمرگ وروسته ژوند يــوه ناحــل شــوې معماگڼي!! هم دارازهغه افغاني ديمكراتان اوسيكولرستان چې تازه دغرب نه بيلتې شوي ديته ورته انگيرنې اواندونه لري.

ديمكراسي په خوله دا دعوه لري چې دټــولنې هروگــړې تــه دهغه حق ورسپاري؛ اوپه دې كې لومړى حق ازادۍ گڼــي؛ وايــي: انســان ازاددى بنــده ندى؛[معاذاللــه] دوهــم وايــي: دنارينــه وو اوميرمنوحقوق برابردي، دريم: دټولنې هروگړى دترقۍ حق لــري؛ اودابيا دهغه ترصواب ديدپورې اړه لري چې هغه څــه ډول ترقــې غواړي؟ په وړاندې يې دحلال، حرام تميز او دروا- وناروا قيودات خنډ كيداى نشي.

اوس پوښــتنه داده چــې ايــا دغــه ډول ديمكراســي زمــوږ دناروغيو لپاره درمل كيداى شي؟ اوايا داشونې هم ده چې زمــوږ په مسلمانه ټولنه كې يوتن دومره ازادپريښودل شي چې هغــه دې آن بنده هم نه وي؟( العياذبالله)اوايا دابه زموږدټــولنې نيكمرغــې وې؛ چــې زوى- و لــور، دواړه دمــور- وپــلار، اوښــځه دخاونــد داطاعت كولوڅخه ووځي؟ اوهغه مهال موږ دانصاف تمــه كــولى شو چې كله ترمنځ مودحلال - حــرام او دروا- اونــاروا بنديزونــه لري كراى شي؟هيڅكله نه!زكه دكوم كالــه نــه چــې دديمكراســۍ ارمغان موږته راغلى هغوى پوهيږي چې ديــن( اســلام) زموږپــه پرگنو اوخلكوكې ژورې ريښې لري، هغوى داســې حكمــت عمــلي غوره كړى چې ديمكراسۍ ته يې دترقۍ، خوشالۍ اوپرمختگ نوم وركړى اوپه خوږواوراښكونكو شعارونويې تعبيروي.

داپه دې وجه كه موږ ته ديمكراسې دخپــل اصــلي مفهــوم اومعنى سره تشريح كړې نوپه وړاندې يې افغانان خامخا غبرگون ښيي، نوپه ښكاره دانحراف په لور دعوتولوپر ځاى يې يوه داســې لارغوره كړې چې هغې ته هرسړى طبعې ميلان لري، زكه دا طبعي ده چې هروگړى غواړي ښه مترقي، هوسا اوخوشــال ژونــد ولــري حال داچې مترقي ژوند، خوښې اوخوشالې ديمكراسۍ پورې هــيڅ تړاو نلري، ديمكراسې دهغــه درې گونومفاهيموڅخــه عبــارت ده كوموته چې موږ بره نغوته وكړه

امريكا دديمكراسۍ اوسيكولرزم دنفاذلپــاره داســې حكمــت عملي غوره كړى، چې په ښكاره لادينيت ته بلل نكوي، اونه داسلام نه انكاركوي بلكې زيارباسي چې داســلام احكــام پــه داســې ډول تشريح كړي چې هغه يوائې دعقل پر بنسټ ولاړوي، نه دشريعت په اساس،اوپه دې لړكې يې دعلماوو دمقاومــت انديښــنې هــم لــه منځــه وړي، هغــه علــماء چــې دهغــوى لخــوا يــې دمخالفــت خطراحساساوه،هغوى يې ديوشميركمزوريوپه وجــه اړكــړي چــې ورسره ملگري شي،اوهغه علماء چې ددوى په دام كــې نــه نښــلي دهغوى دبدناملولوپاره يې مختلفې توطئې په كاراچولې، هغــوى يې په مختلفو نومونو تورن كړي اوهــم پــه ټولــه كــې دديندارۍ

احساس اومـزاج يـې د کمـترۍ ښـکارکړی اودغـرب نـه راغـلي لنډغرپوهان خلکوته دمهذبو ،متمدنواوهوښيارانوپه توګه معـرفي کوي دا داسې حکمت عملي دی چې داسلامه خلک اړوي خـوعلني ارتداد اواعلان ته اړتيا نلري.

هغوی موږ ته وايي ديمکراسـې دټولـو بـدمرغيو، سـتونزو اوناخوالوپای دی؛ اودعروج اوپرمختګ زينه ده، ليکن موږتـه پـه دې اړه بيدارې پکارده اوبايد دديمکراسۍ هغه پايلې وڅيړوچې له امله يې نن ورځ دلويديځ ټولنـه يـوه حيـواني ټولنـه ګرځيـدلې؛ اودلويديځ چاپيريـال يـې يوحيـواني چاپيريـال ګرځولی،بيشـکه لويديځ مادي پرمختګ کړی خودروحانيت دسترنعمت نه يې ځـان محروم کړی!

دلته په لنډول دامريکا په ګـډون پـه څولويـديځوهيوادوکې دديمکراسۍ دهغـو بـدوپايلو( چـې دوی يـې لـوريني اوتهـذيب بولي)جاجونه کوواوهغه اخلاقي چاپيريال اوحالت يـې څيړوچـې دديمکراسۍ په وجه هلته رامنځته شوی

ديمکراسې انسان تـه دټولوقيوداتواومکلفيتونوڅخـه ازادې ورکوي، دهغه زړه چې هرڅه وغواړي په اړه يـې هغـه مجـازدی؛ امريکا چې موږته دديمکراسۍ زهريلا ډالۍ راوړي اوځـان دنـړۍ لوی ديمکرات هيوادګڼي، هلته نورڅه شاته کړه؛ يـواځې دجنسي- اړيکومناظردحيرانتيا .....دغوراو پند وړدي... نه يـواځې دامريکـا دسيل په ښونواودعامه تفريح پـارکونوکې بلکـې هردګڼـې ګـوټې ځای کې په سپينه رڼاورځ اودسپيني لارې پـر سر، دسـورليو پـه موټرو،ريل ګاډواوښاري بسونوکې جنسي- التـذاذيوعام دود دی، دميرمنولپاره دعورت اندامونو پټول عيب اولوڅول يې وياړ اوتمدن دی؛ ځـای پـر ځـای بيحيـا رقاصـه ميرمنولـه لـوري دلوحواواشتهارپاڼو ځړول شرم نه ګڼل کېږي، دزنا کارۍ ځـايونو پيژندلو اودښکلا مجالسوپه نامه دميرمنولـوڅ انځورونـه ويشـل کوم باک نلري

دنړۍ يومعتبراوجيد عالم مولانا مفتـي محمـدتقي عثمانـی مدظله دامريکا په يون ليک کې ليکلي: نيويارک ښـارکې روان وم، يوتن راغی اوپه لاس کې يې يـوه پاڼـه راکړه:هغـه کـې پـه صـفا الفاظوکې ليکل شوي و [playwitnor Bodies] زمـوږ دتـن سره لوبې وکړئ! پر دې علاوه چـې هغـه کـې نورڅـه ليکـل شـوي وو...دسليم فطـرت خاوندتـه يـې پرليکلوحيـا ورځـي، نومـوړی وړاندې ليکي:دجنسي طرزالعمل لـه پلـوه دلويـديځ قومونـه لـه مبالغې پرته دسپيو اوپيشوګانوڅخه هم پـه بـدترکې حالـت کـې قرارلري

اوبيا دحيرانتيا اوعبرت ځای دادی چې په هم هغه ټولنه کـې دديمکراسۍ په لورينه ميرمن دومره ارزانه ده؛ چې تـرې جنسي- لذت حاصلول يوترټولو اسان کاردی، خلوت اړتيا نشته ،هر چيرتـه زنا په قانوني جوازسربيره دعقلي اودود له پلوه هم عيب نـه ګڼل کيږي، اوهلته بيا هم دبالجبر زنا کولوسلنه دومره زياتـه ده چـې الامان...دزناڅخه علاوه دديمکراسۍپه کور( امريکا) کې دهمجنس بازۍ،لواطت رجحان هـم پـه تيـزۍ سره زيـاتيږي اودخپلمنځـي رضايت په صورت کې دا شنيع عمل مشروعتيت لري، داهغـه څـه دي چې موږ ته دلويديځې ديمکراسۍ اصلي بڼـه راپيـژني، همـدا اوس تازه دلويديځ په دوه ديمکراتو هيوادو( هسـپانيې اوکانـاډا) کې پارلمان دراىوپه اکثريت دهم جنسبازانوترمنځ ودونوته قـانوني اجازت ورکړ،په هالينډ اوبيلجـيم کـې خودوړانـدې نـه دا قـانون موجوددی

په ورته توګه دبرتانيې پارلمان هـم پـه ۱۹۷٦زکـې دانـاوړه قانون منظورکړی ، په ۱۹۹۰زکې هانکانـګ دخپـل قـانون څخـه ددغه شنيع عمل په باب تعزيري ماده وويسته په ۱۸٦۱زکې اړلينډ ددې شنيع عمل مرتکبين په سزا محکومول ليکن هلته هـم دتيـرې پيړۍ نيمايي کې هغه قانون لغـوه اودهمجنسـبازانوواده تـه يـې قانوني اجازت ورکړ

ډينمارک پارلمان په ۱۹۹۳زکـې دنارينـه سره دنارينـه واده قانونـاً تسـليم کـړ، پـه ۱۹۹۰زکـې دامريکـا کيلفورنيـا ايالـت فرانسسکوښار، دښاري شورۍ لخوا(پارلمان) تـه ددوه نارينـه وو ترمنځ دجنسي اړيکوجوړولوته قانوني اجازه ورکړه، اوهغوی يـې دروغتيـا پـه ګـډون دټولوټـولنيزو حقوقـو مسـتحق وګرځـول، داناروغې هلته دټولنې په عـامو وګروپـوړې خـاص نـده، بلکـې دټولنې معتبرې کورنۍ اواشخاص لکه داکتران،قاضيان، قانپوهان، لوبغاړي، سياستوال اوپاپان هم پکې اخته دي، دامريکا پـه [منـي پوس] ښارکې په ۱۹۹۵زکې يوکانفرانس جوړشوچې هدف يې پـه امريکايي ټولنه کې ددغه شنيع عمل دخوړولو لپاره تدابيرسـنجول

و، اوراتلونکي کې دهمجنس بازانوپه وړاندې دشته خنډونودلرې کولو په لاروچاروغورکول و

دیادکانفرانس ګډونوالوددې شنیع عمل خوریدل دډاډ وړوبلل، او دحکومت نه یې دغوخ ملاترغوښتنه وکړه، هغوی غوښتنه وکړه چې حکومت باید همجنس بازانوته اسانیتاوې برابرې کړې اوکومې ټولنې چې ددې لپاره زیارباسي هغوی ته دې نغده مرستې ورکړې اوهم دواشنګټن دهمجنس بازانو دټولنې لخوا چې دغړو شمیرېې ۱۵زره ته رسي، دخپلې خاص ورځې لمانځل پیل کړل، دعیسایي پاپانو لوی شمیرپه همجنس بازۍ کې مبتلې دي، دیوې سروې له مخې: ۱۸سلنه امریکایان همجنس بازان دي، اوپه دې کې زیاتوالی راځي، څه موده وړاندې دهسپانیې صدراعظم دچرچ لخوا دکلک مخالفت سربیره نارینه سره دنارینه واده ته قانوني جواز ورکړ، مولانامفتي محمدتقي عثماني صیب په یاده سفرنامه کې لیکي: په امریکاکې زما دمؤقتي استوګنې پر مهال په نیویارک ټایمزکې دهمجنسیت پرموضوع بحث روان و، ما سوچ کاوه چې په روا- ونه روا به یې بحث وي، خو دلوستلوڅخه راته جوته شوه چې دامرحله تیره شوې اوس بحث په دې دی چې ایا اخلاقي قباحت لري که نه؟ اوبل په دې بحث کید چې دې کې دسپین پوستو اوتورپوستوترمنځ کوم امتیازاوتوپیرته حاجت شته اوکه نه؟

دیمکراسۍ کې ترټولو زیات درحم وړحال دمیرمنودی، نرۍ خو دنارینه سره وګه په وګه دمیرمنوودرولوناري وهي، خوهغه چاچې له نژدې ددیمکراسۍ ماحول لیدلی،هغوی چې هلته کومه منظرکښې کړې هغه خوراد تعجب وړده، میرمنوسره هلته د ازادۍ په نوم فریب او دوکه شوې؟ د ترقۍ په نوم تیرایستل شوې؟ولې عملي میدان کې ټول دریمه درجه کارونه میرمنې سرته رسوي، ټولې هغه درنې چارې چې پکې ځواک ته ضروت دی، دنارینه وو پر ځای یې میرمنې ترسره کوي، په هوټلونوکې له خدمت نیولې په ښارونوکې دټوکیوترپلورلواو دوکانونوته دمالونوتررسولو پورې زیاتره کارونه میرمنې سرته رسوي، نرۍ کې هراشتهار دمیرمنو پرته ممکن ندی، هرهغه کارچې دخلکوترمنځ دسیالي اورقابت لپاره وړاندې کېږي انجامول یې دښځوپه غاړه دی، اوبیا دانه چې دکورڅخه دباندې فرایضوپه ترسره کولو کورونوکې دکارونوڅخه وزګاره کړې، بلکې دکوردننه هم کارونه هم دمیرمنو په ذمه دي، دماشومانوپالنه دمعمول په څیردمیرمنودنده ده، تردې چې ددې ازادۍ په لورینه کې دکورهغه چارې چې دبیرون سره اړیکي لري لکه دضرورت وړتوکوپیرل- راوړل، دمیرمنې په فرایضو کې راځي، اوبیا دهغې ټولنیزه رتبه داده چې دهرنارینه زړه وغواړي، دهغې زړه دځان په لور اړوې،هغې سره دوستي کوي، اوچې ترکومه پورې دنارینه زړه غواړي دهغې دقربت نه سرِعام خوندونه اخلي اوکله چې ترې موړشي بیایې پریږدي اودکومې بلې په مندلوپسې سر شي.

لنډه داچې لویدیځ کې نارینه ګام په ګام ددیمکراسۍ دسیوري نه خوندونه اومزې اخلي،اوهغه میرمنې دخپل کاروباراوسوداګرۍ دتشهیرلپاره دمیرمنودانځورونوڅخه کاراخلي، بل پلو دیمکراسۍ نارینه ته دمیرمنې دهرډول بوج پورته کولونه ازادي ورکړې اودنارینه دغه عمل ته یې دمیرمنودازادۍ نوم ورکړی... په خوله دعوه دازادۍ ده چې میرمنې مو دنارینه سره وګه پر وګه درولې خوپه عمل کې میرمنې ټول دریمه درجه کارونه سرته رسوي، اوپه ټولولوړوچارو نارینه قابض دي، که دیوسرنه تربله غربي هیوادونه وڅیرل شي اوداپوښتنه وشي چې تراوسه هلته څومره میرمنې ولسمشرۍ ته رسیدلې؟ څومره میرمنې صدراعظماني شوې؟اویا هلته په کابینوکې دمیرمنو ونډه څومره ده؟نوواقعیت دادی چې په ټولوغربي هیوادکې پرلوړوڅوکیوکې دګومارل شویو میرمنوشمیر دشل پنځه ویشتوڅخه نه ډیرندی، هو! ددیمکراسۍ په نامه یې میرمنې په لارو اوکوڅوکې دغسې ایله کړې چې دخپلوخیټو دمړولو لپاره دیته اړشوې چې دټولنې دریمه درجه کارونه سرته ورسوي، داپه حقیقت کې دمیرمنوحقوق ندي بلکې دهغوی تذلیل او تحقیردی، خو مغرب دیته څومره ښه نوم ورکړي د[ میرمنوحقوق اوازادې]...

اوکومې ټولنې چې میرمن دکورملکه ټاکلې او په سریې دحیاپوړنی خورکړی،پرهغه یې ددقیانوسیت (زړه پالنې) مهرلګولی،ورته دپسمانده ګۍ پیغورونه ورکوي،او خپل [فراډ]ته دجوازسندپیداکوي،بې وزلې میر منې ته باورورکوي چې ددې دحقوقو علمبرداره دیمکراسي اوغربي ټولنه ده اوبل دمیرمنو

دمظلومیت خورا ځورونکی اړخ دادی چې دامظلومه دخپل مظلومیت نه خبره هم نده، اوکومولاسونوچې ددې عزت، وقار اواحترام دخاورو سره ګډ کړی دی هم هغوته دنجات بښونکو په نظرګوري...

غربي ټولنه باندې ددیمکراسۍ بله لورینه دشراب خانوده؛ هلته دشراب خانونه علاوه هرډول نشه توکیي پلورل - وپیرل دعادي سوداګرۍ بڼه لري، په ځوان کهول کې دافینو، چرسو، اوپوډرو استعمال عام دی، دراحت اوژوند دهرډول اسانتیاوو دعیش وعشرت دبې شمیره اسبابوباوجود بیا هم دغربي ټولني وګړي دزړونودسکون څخه محروم دي، اکثریت په نا ارامۍ اوناکرارۍ کې ژوندتیروي دخوب کمښت دشکایت سره مخ دي او لویه سلنه دخوب لپاره درمل کاروي...

په دې ټولو ناخوالو سربیره دکورنیوداړیکونظام دیمکراسۍ پاشلی دی، دخپلوخپلوانوسره دمیني، محبت، الفت اوزړه سواندۍ صفات پخواناياب شوي، په همدې ټولنه کې بوډاګان دمرګ نه په زیات بدحالت کې مبتلی دي،دهغوی لپاره جلاخونې جوړې شوې، هغوی ته هلته اوبه - خواړه رسي، خودهغوی سترګې په محبت پسې رندې دي ، هغوی دخپلواولادونو، اوخپلوانو په دیدن پسې ځوریږي، دخورا شتمنواولویوسیاستوالو اومشهورو خلکوپلرونه اومیندې په هغوځانګړوخونوکې اوسي اودخپلو لونو او زامنو لیدو ته کلونه کلونه انتظارباسي اوکوم سپین روبي چې پخپلو کورونو کې میشت دي هغوی سره دخبروکولولپاره څوک نه مندل کېږي، هغوی خبرپاڼې خپروې چې موږ سره په فلاني ادرس وصل شئ یوساعت خبرې راسره وکړئ! او ددې همدردۍ په بدل کې پیسې هم ورکوي، په تنهایي کې ځوریدونکي بوډاګان ځیني وخت دکوم کارپرته خلکوته زنګونه وهي او ورسره دلږځنډلپاره دخبرو خواستونه کوي...

دا دهغه ټولنو او هیوادو نیم انځوردی چیرته دیمکراسي راج لري، او ځلا اوپرکایي دافغاني دیمکراتانونظرونه خيرن کړي،موږدڅوکلوراهیسې ددیمکراسۍ مزه وڅکله، دښارونوله واټونو،ترپوځي هدواودوزیرانو اوسلاکارانوله دفترونوڅخه دولسمشرتردفتره دجنسي ځورونو دتعفن بویونه ځي، په دې موده کې په لوړودندودمیرمنودګومارلواهلیت؟ جنسي ځورته غاړه ایښودل ...؟ داکومه پته- پناه خبره نده ترنړیوالورسنیویې زګیروي خیژي. وربانديې شنني اوبحثونه روان دي، زکه چې دیمکر اسي اول ظلم په میرمنوداکوي چې دهغوی حیا اوعفت لوټوي، اوهغوی دنامحرمونارینه وو لاس ته کینوي، اوپه دې توګه شهوت پرستان ددیمکراسۍ فرصت نه په ګټه کرارکرار ټولنه کې دخپلو شهواني غریزو دتسکین په موخه دغیري فطري پدر- مادرآزارې ازادۍ رامنځته کولو هڅې کوي،ځواني نجونې دډول ډول لالچونوپه دام کې نیسي دانن چې په کابل کې دکورنیو،دفاع اونورو وزارتونو اودنیوپارک ترسفارتونو پر کلیدي پوستونو ځواني نجونې مقرردې، په غوراوي کې یې دارګ دننه پټه جنسي- هوس لرونکې مافیه لاس لري چې نه افغانان دي اونه مسلمانان... او دخارج نه رالیږل شوي ددې لپاره دي چې دافغان ولس دیني، اخلاقي اوکلتوري ریښې وباسي او دمیرمنودحیااوپت پوړني تاتارکړي

دهغوافغاني لیکوالو او پوهانو په ضمیرونو افسوس چې عمرونه یې دافغان کلتورپه ژغورنه کې تیرکړي اواوس هم پکې لګیادي ،اویووخت یې ځانونه دپښتني عنعناتودومره قوي مدعیان بلل اودفرهنګي افراط کچه یې دومره لوړه وه چې هیوادکې به په یوه نیمه لوحه به یې چیرته یونیم عربي یا اردو توری لیکل شوی ولید نو سملاسي به یې قلم راوويسته اوپه افغانی ادب د تیري آه وفغان به یې شروع کړاونن چې دافغاني پت اوغیرت جنازې وزې څو سوه ډالري معاش یې خولې داسې ګنډلې چې حرف هم ترې نه راوزي اودغیري دودیزې دیمکراسۍ ترپلولاندې د څوډالرولپاره دا ټولې ناخولې زغمي اودکلتور او فرهنګ ژغورلوافراط ته شا کړې... پای



# گفتار نیک و پسندیده!

عبدالرحمن

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَ» :إِنَّ الْعَبْدَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنْ رِضْوَانِ اللَّهِ، لا يُلْقِي لَهَا بَالاً، يَرْفَعُهُ اللَّهُ بِهَا دَرَجَاتٍ، وَإِنَّ الْعَبْدَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنْ سَخَطِ اللَّهِ، لا يُلْقِي لَهَا بَالاً، يَهْوِي بِهَا فِي جَهَنَّمَ « )رواه بخاری(

ترجمه :از ابوهریره) رضی الله تعالی عنه (روایت است که گفت :رسول الله) صلی الله علیه وسلم (فرمود :بنده، سخنی در جهت رضای الله به زبان می‌آورد، بدون این‌که به آن فکر کند؛ ولی الله به وسیلهٔ آن سخن، به درجاتش می‌افزاید .هم‌چنین بنده سخنی در جهت ناخشنودی الله به زبان می‌آورد، بدون این‌که به آن توجه کند؛ ولی به وسیلهٔ آن سخن در جهنم سقوط‌اش می‌دهد.

توضیح حدیث

نخستین چیزی‌که از این حدیث واضح می‌شود، اینست که بر مسلمان لازم است قبل از این‌که سخنش از طرف دیگران وزن و سنجیده شود، خودش آن‌را وزن کند؛ یعنی سنجیده سخن بگوید .به این معنی که سخن انسان باید" حسن و طیب "باشد؛ زیرا در این مورد آیات کریمه و احادیث شریف به وفرت موجود است .الله سبحانه وتعالی فرموده است:

﴿وَهُدُوا إِلَى الطَّيِّبِ مِنَ الْقَوْلِ﴾] حج[٢٤ :

ترجمه :و راهنمایی شده‌اند به گفتار نیک و خیر.

﴿وَقُولُوا لِلنَّاسِ حُسْنًا﴾] بقرة [٨٣ :

ترجمه :و با مردم به زبان خوش تکلم کنید.

﴿وَقُلْ لِعِبَادِي يَقُولُوا الَّتِي هِيَ أَحْسَنُ﴾] اسراء : ٥٣[

ترجمه :و بندگانم را بگو که همیشه سخن بهتر را بر زبان آرید.

﴿إِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ﴾] فاطر[١٠ :

ترجمه :سخنان پاکیزه به سوی او بالا می‌رود.

از عدي بن حاتم رضی الله تعالی عنه روایت شده که :رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمود:

»اتَّقُوا النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ فَمَنْ لَمْ يجدْ فَبِكَلِمَةٍ طَيِّبَةٍ) «متفقٌ علیه(

ترجمه :خود را از آتش دوزخ نجات دهید؛ گرچه با صدقه دادن نصف دانهٔ خرما باشد؛ اگر این‌را هم نداشتید، با سخن پسندیده )وحسن خلق (خود را از آتش نجات دهید.

از ابو هریره رضی الله تعالی عنه روایت است که رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمود:

»مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا أَوْ لِيَصْمُتْ) «متفقٌ علیه)

ترجمه :کسی‌که به الله متعال و روز آخرت ایمان دارد، باید سخن خیر بگوید و یا خاموش باشد.

از عقبه بن عامر رضی الله تعالی عنه روایت است که گفت :گفتم یا رسول الله صلی الله علیه وسلم سبب نجات چیست؟ فرمود:

»أَمْسِكْ عَلَيْكَ لِسانَك) «...رواه ترمذی و قال :حديثٌ حسن(

ترجمه :زبانت را محکم گیر) از گفتار بیهوده(نگهدار.

از معاذ بن جبل رضی الله تعالی عنه روایت شده که گفت :گفتم یا رسول الله صلی الله علیه وسلم از عملی باخبرم کن که مرا به بهشت داخل نموده و از دوزخ دور کند !فرمود:

...»وَهَلْ يَكُبُّ النَّاسَ فِي النَّارِ عَلَى وُجُوهِهِمْ إِلَّا حَصَائِدُ أَلْسِنَتِهِمْ) «رواه ترمذی وقال :حديثٌ حسنٌ صحيح(

ترجمه :آیا چیزی جز محصول زبان‌های شان مردم را به روی‌شان در آتش می‌اندازد؟!

از عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما روایت است که رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمود:

»إِنَّ فِي الْجَنَّةِ غُرْفَةً يُرَى ظَاهِرُهَا مِنْ بَاطِنِهَا، وَبَاطِنُهَا مِنْ ظَاهِرِهَا، فَقَالَ أَبُو مُوسَى الْأَشْعَرِيُّ :لِمَنْ هِيَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ» :لِمَنْ أَلَانَ الْكَلَامَ، وَأَطْعَمَ الطَّعَامَ، وَبَاتَ لِلَّهِ قَائِمًا وَالنَّاسُ نِيَامٌ) «رواه طبراني وحسنه الهيثمي والمنذري والحاكم وصححه)

ترجمه :در جنت اطاقی است بسیار زیبا، که از داخل‌اش بیرون معلوم می‌شود، از بیرون داخل‌اش معلوم می‌شود .ابو موسی اشعری پرسیدند :یا رسول الله این جایگاه برای چه کسانی آماده شده؟ فرمودند :برای کسانی‌که) با مردم سخن نرم می‌گویند (انفاق و صرف طعام می‌کنند، شب را به‌خاطر الله به قیام می گذرانند؛ در حالی‌که مردم در خواب می‌باشند.

از عبدالله بن مسعود رضی الله عنه روایت است که گفت:

»واللهِ الذي لا إلهَ إلاّ هو ليسَ شيءٌ أحْوَجَ لِطُولِ سَجْنٍ من لِساني«

ترجمه :قسم به الله که معبودی جز وی نیست؛ هیچ چیزی محتاج‌تر از زبانم برای طول زندان نیست.

و می‌فرمود:

»يا لسانُ قُلْ خيراً تَغْنَمْ واسْكُتْ عن شرٍّ مِنْ قَبْلِ أنْ تَنْدَم«

ترجمه :ای زبان سخن نیک بگو که غنیمت است و از گفتن سخن شر ساکت باش، قبل از آن که پشیمان شوی.

برادران مسلمان !چه بسا جای شگفت است به کسانی‌که به الفاظ زشت و گناه سخن می‌گویند؛ بدون آن‌که عاقبت آن را فکر کنند . عجب است به مسلمانی‌که برادر مسلمانش را تکفیر می‌کند؛ بدون آن‌که به الفاظ خود بیندیشند .چه بسا جای شگفت است به کسانی که نسبت دروغ می‌بندند به جماعت‌ها و گروهای اسلامی و چیزهای را که نباید بگویند، می‌گویند؛ بدون آن که عاقبتش را فکر کنند . چه بسا جای شگفت و تعجب است به کسانی که میان مردم فساد کاری می‌کنند .چه بسا جای تعجب است به حال کسانی‌که غیبت کننده و سخن‌چین هستند .با درنظرداشت آنچه در فوق ذکر گردید، لازم است که از قهر و عذاب الله عزیز و جبار ترسید؛ چنان‌چه اوتعالی می‌فرماید:

﴿مَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ﴾ ]ق[١٨ :

ترجمه :انسان هیچ سخنی را بر زبان نمی راند؛ مگر این که فرشته‌ای مراقب و آماده) برای دریافت و نگارش (آن سخن است.

❊ ❊ ❊

**په هیواد کې د وروستیو درنو ملکي تلفاتو په اړه**

# د اسلامي امارت د سیاسي دفتر اعلامیه

دروانې جولايي میاشتي په ۷ او ۸ مه نیټه د قطر په بین الافغاني کنفرانس کې، د نورو موضوعاتو تر څنګ د ګډونوالو لخوا فیصله وشوه چې د جګړې ټولې غاړې به کوښښ کوي چې په افغانستان کې د عامو خلګو وژنه صفر ته را ټیټه کړي او د هستوګنې د کورونو او کلینکونو حریم ته خاص احترام وکړي.

خو د کنفرانس تر پای ته رسیدو را وروسته لیدل کیږي چې په ټول هیواد کې د کابل اداري عسکر او د هغوی بهرني ملاتړي په پراخه کچه لاهم په عامه وژنو بوخت دي، د بیلګې په ډول څو ورځې وړاندې د بغلان ولایت په ډنډشهاب الدین سیمه کې په یو ملکي کور بمبار او هلته دېنځو او ماشومانو په ګډون ټوله (۷) کسیزه کورنۍ په شهادت رسول، د هرات په شینډنډ ولسوالۍ کې څو ځایه په ملکي خلکو بمبار او (۹) تنه ملکي هیوادوال په شهادت رسول.

څلور ورځې وړاندې د میدان وردګو دایمرداد ولسوالۍ تنګې سیمه کې په روغتون چاپه وهل، هلته د طبي پرسونل او مریضانو په ګډون ۴ تنه ملکیان په شهادت رسول، د پکتیکا په ښرنه کي د اربکي قومندان له لوري، دیوه غیر نظامي حافظ په شهادت رسول او داده تیره شپه د میدان وردګو د جغتو ولسوالۍ په چوپان او نورو سیمو کې په ملکي خلکوشپني برید او تر ۱۶ پورې ولسي افغانان، چې څلور تنه یې دیوه سرې زامن و قصدا په شهادت رسول یې ښکاره بیلګې دي.

له دې پیښو ښکاري چې د کابل اداره او بهرني ملاتړي یې د دوحې د کانفرانس په څیر د ولس او مخورو د هیڅ کومې فیصلې احترام نه کوي.

اسلامي امارت د ملکي خلکو دغه وژنې په سختو ټکو غندي او جنګي جنایت یې بولي.

همدا ډول په دوحه کې د بین الافغاني کنفرانس په ګډونوالو غږ کوي چې له ژمني سره سم د یادو عامه وژنو پرخلاف غږ پورته کړي، او له ټولو ممکنه لارو څخه د دغو بوږنونکو بشري ضد کړنو په مخنیوي کې خپل مکلفیت ادا کړي.

همدا ډول موږ له نړیوالې ټولنې، بشري نهادونو، رسنیو او حقوقي ادارو څخه هم غواړو چې په افغانستان کې د ملکي خلکو د ژوند په اړه خپل مکلفیت پوره کړي، عملي ګامونه واخلي او د یادو جنایاتو په مخنیوي کې لاس په کار شي.

اسلامي امارت له خپله لوري بشپړه هڅه کوي چې د ملکي خلکو له ژوند سره احتیاط وکړي او هیڅ ځای هم په قصدي ډول ملکي خلک تر هدف لاندې رانشي.

د اسلامي امارت د سیاسي دفتر ویاند محمدسهیل شاهین

۱۴۴۰/۱۱/۱۱هـ ق

۱۳۹۸/۴/۲۳هـ ش ـ ۱٤/۷/۲۰۱۹م

